# کندهار

د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه

د ۱۳۹۲ش کال دریمه ګڼه

(اسد - سنبله)

د اسلم لوڼ دیوان

اغېزه ناکه مذاکره

سمبولیزم او ابهام

د ځوانانو نړیواله ورځ

اووه لرغوني مدنیتونه

د سقراط تلپاته نظریات

د عبدالرحیم هاتف لیکونه



د رازمحمد راز په ویر کې

احمد شاه اعظمي

# زما استاد او د پښتو ژبې فلسفي شاعر، ليکوال او ناول کښونکي **پروفيسر راز** له نړۍ سترګي پټې کړې!

**هغه چا چي په ديوتابلــلم خلــکو**
**هغه چا تر خپل غرور اوس صدقه کړم**

د پښتو او اردو ژبې فلسفي شاعر، ليکوال او ناول ليکونکي پروفېسر راز محمد راز د ۱۹۵۱م کال د مارچ پر لومړۍ نېټه د سهېلي پښتونخوا په پښين ښار کي د ملک محمد دين په کور کي وزېږېدی. نوموړي په ۱۹۷۳م کال کي له کوټې پوهنتون څخه د بيچلر يا لسانس سند تر لاسه کړ او بيا وروسته ئې په ۱۹۷۵م کال کي له کراچي پوهنتون څخه په تاريخ کي د ماسټر ډګري تر لاسه کړه. د پوهنتون تر زده کړو وروسته ئې د سهېلي پښتونخوا په بېلابېلو کالجونو (پوهنځيو) کي د ښوونکي په حيث دنده تر سره کړه. نوموړي په ۲۰۱۱م کال کي له پښين ډګري کالج څخه د پرنسپل (رئيس) په حيث تقاعد تر لاسه کړ.

پروفېسر راز د پښتو، اردو او انګرېزي ادب ژوره مطالعه درلوده. نوموړي د ميني او فلسفې په ګډ امتزاج سره د شعر او ناول نړۍ په ارزښتناکه مرغلرو بډايه کړه. نوموړي پښتو شعر له نوو فلسفيانه افکارو او ترکيباتو سره د آشنا کولو سربېره په پښتو او اردو ژبه ناولونه هم ليکلي ول چي ځيني ئې چاپ، ځيني ئې تر چاپ لاندي او ځيني ئې نيمګړي پاته سول.

راز يو شاعر، فلسفي، ليکوال او استاد وو چي په ليکنو کي ئې نوښت تر سترګو کېدی. د نوموړي تر اوسه (د صليب په دايرو کي مات وزري زاني ژاړي) په نوم د پښتو شعرونو ټولګه، (دي هولي سينرز) په نوم د اردو ناول، (عاشو، لمر او باران اوري) او (کابل رنګ دئ ميني ژاړي) په نوم د پښتو دوه ناولونه، (اوشنيک ګاډيس) په نوم د آزادو نظمونو ټولګه او د (کاسميک سېکسوليزم) په نوم ئې په پښتو ژبه د فلسفې، تصوف او جماليات په اړه کتاب چاپ سوی دئ.

نوموړي د ۲۰۱۳م کال د جون پر ۲۳مه نېټه له دې فاني نړۍ سترګي پټې کړې. روح دې ښاد وي.





# کندهار

علمي، تاریخي، ادبي او ټولنیزه مجله

د امتیاز څښتن: د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست

**دریمه دوره**
**د ۱۳۹۲ش کال دریمه ګڼه (زمری - وږی)**
**پرله پسې ۵۸ مه ګڼه**

مؤسس
**محمدولي ځلمی**

سرپرست چلوونکی
**مطیع الله روهیال**

کتنپلاوی
ډاکټر عبدالرازق پالوال
څېړندوی شېرشاه رشاد
حـیات الله رفیقي
عبدالـکریم طالب
فضل محمد پنهان

کمپیوټر چاري
**پردیس روهیال**

**څو ضروري یادوني**

- کندهار مجله اسلامي او ملي ګټو ته زیانمني لیکني نه خپروي.
- کندهار مجله د مجلې د ټاکني لیکني معیار سره سم د لیکنو په اصلاح کې د لاسوهني حق لري.
- را استول سوي لیکني بیرته نه ورکول کیږي.
- هره لیکنه د لیکوال خپل نظر څرګندوي.

**په هیواد او دباندي کي د مجلې بیې**

هیواد: ۲۰ - افغانی

پاکستان: ۳۰ - کلداري

**کلني ګډون**

هیواد: ۱۲۰ - افغانی

پاکستان: ۲۰۰ - کلداري

نور هیوادونه: ۸۰ - امریکایي ډالره

پته
علامه حبیبي واټ
د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست
د کندهار مجلې دفتر
ټلیفون: ۲۰۰۱۴۴۰

# فهرست


۱. د ځوانانو نړیواله ورځ/ د ادارې یادښت ............... ۳ اداره

۲. د علي محمد مخلص د ژوند اجتماعي او فرهنګي ...... ۴ محمدهارون خپل شعشعي

۳. د سقراط تلپاته نظریات ........................ ۲۷ ژ/ واحد فقیري

۴. د راز محمد راز په ویر کي ........................ ۳۵ عبدالباري جهاني

۵. د نورستانیانو مجرد او مختصر تاریخ ............... ۳۸ ډاکټر عبدالرازق پالوال

۶. هنر او ادب ..................................... ۴۳ اداره

۷. د عبدالرحیم هاتف لیکونه ........................ ۴۷ عبدالرحیم هاتف

۸. اووه لرغوني مدنیتونه ............................ ۵۰ ډاکټر نثاراحمد صمد

۹. سمبولیزم او ابهام.................................. ۵۷ اجمل ښکلی

۱۰. د اسلم لوڼ د شاعرۍ څو ځانګړني .................. ۶۱ څېړندوی عبدالغفور لېوال

۱۱. د اروابناد محمد اسلم لوڼ ژوندلیک ................ ۶۴ څېړنیار رفیع الله نیازی

۱۲. نوبل جایزه وړونکي ادیبان.......................... ۶۹ ژ/ نثاراحمد آریا

۱۳. یو بل نومورکی شاعر ...... ...................... ۷۲ بشیراحمد بشارت

[illegible] د اسلم لوڼ دېوان ............................ ۷۴ څېړندوی حبیب زوی

۱۵. اغېزه ناکه مذاکره................................... ۷۶ ژ/ سعید لودین

۱۶. د نوي قاموس لیکني میتودلوژۍ ته یوه کتنه .......... ۸۰ لنډیز/ احمد صمیم

# د ځوانانو نړیواله ورځ

د ملګرو ملتونو نړیوال سازمان په ۱۹۹۹م کال په رسمي ډول پرېکړه وکړه، چې د اګست دوولسمه ورځ د ځوانانو د ورځې په نوم ونوموي او په دوه زرم کال ئې په نړیواله کچه دغه ورځ ولمانځله. په افغانستان کې د نوي حکومت په منځته راتګ سره دغې ورځې ته توجه وسوه او هر کال د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت له خوا په مرکز کابل او اړوندو ریاستونو له خوا په ولایاتو کې د دغې ورځې په مناسبت ترتیبات نیول کېږي.

د دغې ورځې اصلي هدف دا دئ چې د اولسونو د زیات قشر یعني ځوانانو قدرداني پکښې وسي، د هغو خولو تویولو او خواریو احترام پکښې تر سره سي چې ځوانان ئې د خپلو اولسونو او خلکو له پاره تر سره کوي. په افغانستان کې هغه ځوانان چې عمر ئې د پنځلسو او دېرشو کلونو تر منځ وي په سلو کې دروځلوېښت فیصده جوړوي، دغې لویې فیصدۍ ته په کتو سره سړی ویلای سي چې زموږ د ټولني راتلونکې د همدغې فیصدۍ په لاس کې ده، خو دا چې خپله ځوانانو ته په څونه اندازه د کار او فعالیت زمینه مساعده ده بېله پوښتنه ده.

افغاني ټولنه یوه له هغو څخه ده چې که خدای کول د خپلو ځوانانو په مټ به روښانه راتلونکې ولري، خو په دې شرط چې ځوانان ئې له خپلې انرژۍ او سپک څخه واقعي استفاده وکړي، دا ښکاره خبره ده چې ځوانان د هري ټولني د شمزۍ حیثیت لري، خو که د دغه فزیکي ځواک سره زموږ ځوانان فکري او ذهني وړتیا هم ملګرې کړې، نو په ریښتیا به هم زموږ د ټولني تر نن، سبا روښانه وي. د دغسې یوې روښانې ورځې د لیدو په هیله دولتي اداره، د ځوانانو بېلابېلې ټولني او په مجموع کې د ټولني ټول وګړي مکلف دي چې د خپلو ځوانانو د ښې روزني او پالني له پاره تر خپله وسه کار وکړي او په ضمن کې د مستعدو او پرکاره ځوانانو د تشویق او ترغیب په موخه د هغوی قدرداني وکي.

په کندهار کې د ځوانانو له پاره د بېلابېلو نهادونو له خوا فعالیتونه تر سره کېږي، زموږ ځوانانو ته بویه چې د دغسې فعالیتونو د لا پتمکتیا او ډېرېدو له پاره خپلې وړتیاوې او استعدادونه نور هم وځلوي، څو د دوی د زیار او زحمت په نتیجه کې بالعموم ټول افغانستان او بالاخص د کندهار ولایت نور هم پرمختګ وکړي. د ځوانانو د ورځې لمانځلو له پاره د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست د ځوانانو آمریت هڅې او د ځوانانو د ورځې لمانځل د خاصې یادونې وړ دي، چې د خپلو ځوانانو له پاره هراړخیز فعالیت او خواري کاږي.

د ودان او ښېرازه افغانستان په هیله

په درنښت

محمدهارون خپل شعشعي/لندن

# د علي محمد مخلص

## د ژوند اجتماعي او فرهنگي حالات

علي محمد مخلص (تر ۱۰۶۹ق کال پوري په يقين سره ژوندی) د هندي ټولني په خاصو تاريخي، اجتماعي، کلتوري او فکري شرايطو کي ژوند کاوه. په دې شرايطو کي د هندوستان په مسلمانانو کي ځينو نورو اسلامي ټولنو غوندي د پيرۍ او مريدۍ بازار خورا گرم ؤ. په هندي مسلمانانو کي د تصوف او طريقت دې ژور نفوذ ځان ته خاص سياسي او اجتماعي علتونه لرل. تاريخ شاهد دئ، چي خلگو په مرکزي اسيا، افغانستان، ايران، مصر، هند او شاوخوا سيمو کي د چنگېزيانو تر وحشتناکو وژونو، مظالمو او ورانيو وروسته د ژوندانه له بېلابېلو ناخوالو څخه د تښتي په هيله د تصوف او طريقت و مرکزو ته مخه کره. د اولياوو خانقاوي د دردمنو او ستمځبلو خلگو د غونډېدو او پيوستون په لويو مرکزو واوښتې[1]. سياسي واکمنانو د دې حقيقت په پوهېدو سره هلې ځلي وکړې، چي په هره ممکنه وسيله د دغو مرکزو په روحاني مشرانو کي خواخوږي او مخلصان و مومي؛ او له دې لارې د ټولني پر سپېڅلو او مظلومو خلگو حکومت وکې. د تاريخ په سينه کي داسي مثالونه خورا ډېر دي، چي مستبدو حاکمانو د خپل ظالمانه واک د اوږدولو يا ناروا پرېکړو د مشروعيت دپاره د طريقت او روحانيت و پېشوايانو ته سرونه ټيټ کړي دي؛ او د خلگو په زړونو کې (کي يې) د هغو له ميني او نفوذ څخه ناوړه گټه اخيستې ده. د اسلامي تصوف او عرفان وتلی شخصيت او نامتو شاعر - نورالدين عبدالرحمان جامي (۸۱۷ هـ ق/ ۱۴۱۴ع - ۸۹۸ هـ ق/ ۱۴۹۲ع)، په بابا صاحب يا بابا ولي مشهور، حسن ابدال کنداري سبزواري[2]، په پير بابا مشهور د قنبر علي زوی، سيد علي، هغه روحاني شخصيونه وه، چي له تيموري او گورگاني واکمنانو سره يې ټينگ تعلقات لرل. پير بابا (د امير تيمور د خور له پښته) او د هغه خواخوږی، اخوند درويزه، هغه کسان وه، چي د پيرۍ او روحانيت په جامه کي پښتانه د روښاني غورځنگ پر خلاف د هند د مغولي واکمنانو و اطاعت او همکارۍ ته ور بلل. تر دوی وروسته هم د دې هيواد په تاريخ کي له

روحاني متنفذينو څخه د سياسي هدفو د تأمين په لار کې ګټه اخیستل سوې ده. زموږ په زمانو کې هم داسي مثالونه لږ نه دي، چې سياسي واکمنانو د خپل کرغېړن واک د اوږدولو او نورو ناروا نخشو د تحقق دپاره د طريقت او روحانيت و مرکزو ته پناه وړې ده؛ او د ځينو تش په نامه روحاني شخصيتو په رانيولو يا کرايه کولو سره يې د استبداد، پسات (فساد) او بې عدالتيو نظامونه جاري ساتلي دي.

د هندوستان ستر مغولي پاچا – جلال الدين محمد اکبر (۹۶۳هـ ق/ ۱۵۵۵ع – ۱۰۱۴هـ ق/۱۶۰۵ع) په اسلامي تصوف، يهوديت، مسيحيت، هندوييزم، جينيزم، بوديزم، زردشتي دين او نورو فکري – مذهبي ډلو کي د خپل سياسي نفوذ د پراخلو دپاره، په فتح پور سيکري کي د عبادتخانې په نامه ځانګړې ودانۍ جوړه کړه، چي هره جمعه بې (به يې) ديني مباحثې او مناظرې پکښې کولې[۳]. په «عبادتخانه» کي به صوفيانو، فيلسوفانو، نطاقانو، حقوقپوهانو، سني او شيعه عالمانو، برهمنيانو، ملحدانو، د جينيزم او بوديزم پيروانو، يهودانو، مسيحانو، زردشتيانو او داسي نورو اندېشمندو کسانو برخه اخيستله[۴]. جلال الدين اکبر د همدې سياسي نفوذ په مخسد وروسته د خپلو درباريانو په کومک د «الهي دين» په نامه يو داسي دين جوړ کئ، چي د بېلابېلو اديانو او فکري ډلو عقايد او افکار پکښې يو ځای سوي وه. د «الهي دين» د لارښوونو او حُکمونو له مخي، و اکبر پاچا ته د «خليفة الزمان» يا «کامل انسان» مقام ور کړل سو.

د «الهي دين» پيروانو به کليمه داسي ويله: لااله الاالله اکبر خليفة الله. د دوی په نظر خليفة الله ته اخلاص څلور درجې لرلې: مال پرېښوول، ناموس پرېښوول، دين پرېښوول او د خليفه په لار کي تر ځان تېرېدل. اکبر، د دې مقام په تر لاسه کولو سره رسماً واک لاره، چي د يوه «عادل پاچا» په توګه د مختلفو مذهبي او فکري ډلو د لانجمنو او کړکېچنو ديني او فکري مسألو د حلولو په خاطر پرېکړې وکي[۵]. مغولي امپراتور او درباري ملازمانو په دې هم بسنه و نه کړه. د اسلام د سپېڅلي دين زياتره حُکمونه يې زاړه او نابابه وبلل. څه موده وروسته يې د تفسير او فقهي لوستل هم پرېښوول[۶]. د هجري تاريخ پر ځای يې د «الهي تاريخ» په نامه يوه بېل تاريخ را و ايستئ، چي د اکبر د پاچهۍ له زمانې (۹۶۳ هـ ق/ ۱۵۵۵ع) څخه شرو (شروع) کېدئ. سره له دې هم د دې مهال مشهور مورخ، حاجي عارف کنداری، کاږي چي اکبر په ټولو ماجتو (مسجدو) کي د اميرالمؤمنين په نامه يادېدئ. د دې زمانې بل نامتو مورخ، ملا عبدالقادر بدايوني، راوړي دي چي له «الله اکبر» څخه د جلال الدين اکبر مخسد نه يوازي د خدای تعالی لويوالی، بلکي د ځان لويوالی هم ؤ[۷].

ډاکټر محمد عبدالحق انصاري په خپل اثر «تصوف او شريعت» کي د شېخ احمد کابلي سرهندي المجدد الف ثاني

(۹۷۱هـ ق/ ۱۶۲۴ع ۱۰۳۴-هـ ق/ ۱۶۶۴ع) د نظریاتو له مخې د دې مهال د ټولنیزو او فرهنګي شرایطو په باره کې داسي لیکي: «مسلمانانو د خپلو دیني عقایدو او رواجو د نه پېژندلو په وجه د غیر مسلمانانو په مذهبي مراسمو کې پراخه برخه اخیستله؛ د ډول ډول غوښتنو دپاره بې د هغوی و خدایانو ته دوعاوي کولې؛ د څراغو او شمو (شمعو) په لګولو سره بې د هندوانو د «راکهي» او «دیوالي» جشنونه لمانځل؛ او د مسلمانانو په دغه راز دیني پسات (فساد) کي به جاهلو صوفیانو هم ستره ونډه لرله[۸].

د هغوی په سپارښتنه به عامو خلګو و مشایخو ته نذرونه او خیراتونه ور وړل؛ او پر مزارو بې قرباني کولې. زیاترو صوفیانو به تر فرض او سُنت، و فکر او ذکر ته ډېر ارزښت ورکاوه؛ د سماع غونډې بې جوړولې؛ او په روحاني نڅاوو به اخته وه؛ د جمعې او جماعت لمانځه ته بې شا اړولې وه، خو د څلوېښتو ورځو هغه روحاني تمرینونه بې په ډېر ټینګار او توجه سره کول، چې د «چلې» یا «اربعینت» په نامه یادېږي؛ د پیرانو او مرشدانو د اوداسه اوبه به د تبرک او تیمن په ډول و مریدانو ته د څښلو دپاره ورکول کېدې[۹].

د جلال الدین اکبر د زوی - نورالدین سلیم جهانګیر (۱۰۱۴هـ ق/ ۱۷۰۵ع - ۱۰۳۷هـ ق/ ۱۶۲۸ع) د دیني عقیدې په باب هم بېل بېل نظرونه وړاندي سوي دي. څینو ملحد، څینو مسیحي، څینو په بېلابېلو مذهبو کي د چاپ کوونکي او څینو نورو د پلار د «الهي دین» پیرو ګڼلې دئ[۱۰]. خو دا خبره زیاترو مورخانو منلې ده، چې جهانګیر په هندي ټولنه کي د بېلابېلو ادیانو، ژبو او نژادي ډلو تر منځ د اړیکو د تنظیم په اړه د پلار د زغم، برابرۍ او ازادۍ اصول پر مخ بېول. دا وخت په هندي مسلمانانو کي د قادریه، چشتیه، سهروردیه، نقشبندیه، ملتانیه، بهاییه، شاذلیه او څینو نورو په ګډون د څورلسو تصوفي طریقو پیروانو فعالیت کاوه. د پروفیسر عبدالرشید په نظر، که څه هم جهانګیر د ازادخیالو صوفیانو له خوا روزل سوئ ؤ، خو وروسته یې د سخت او افراطي اسلام و خوا ته ګامونه واخیستل، تر څو په دې وسیله د پلار د لیبرل دیني سیاست او متعصبو مسلمانانو تر منځ انډول او برابري راولي[۱۱].

د شاه جهان په زمانه کي د تصوفي حلقو او مغولي دربار تر منځ بیا نیژدې او ټینګي اړیکي پیداکېږي. شازاده (شهزاده) داراشکوه (۱۰۲۴هـ ق/ ۱۶۱۵ع - ۱۰۶۹هـ ق/ ۱۶۵۹ع) په خپله له تصوف او عرفان سره زیاته مینه ښیي؛ او تر زیاتو کوښښو وروسته پر اسلامي عرفان سربېره په بېلابېلو هندي ادیانو کي د ریاضت او تصوف په اړه په زړه پوري څېړني کیي. د داراشکوه «سفینة الاولیاء»، «سکینة الاولیاء»، «مجمع البحرین»، «رسالهٔ حق نُما»، «حسنات العارفین»، او «سِر اخبار یا سِرالاسرار» د هغه وخت په عرفاني ټولنو کي د ارزښتناکو اثارو په توګه یادېدل[۱۲]. د

داراشکوه عرفاني نظريو د مغولي دربار او خپلي کورنۍ پر غړو پراخه اغېزه وښندله. خور (جهان آرا) او ورېرې (زيب النساء) يې د ده د عرفاني افکارو د نفوذ په وجه د تصوف او عرفان نړۍ ته مخه کړه. جهان آرا د پلار تر بندي کېدو او مړيني وروسته هم و ديني او روحاني چارو توجه کوله. په ۱۶۴۴ع کال د سوځېدو له يوې خطرناکې پېښې څخه تر جوړېدو وروسته په اجمير کي د خواجه معين الدين چشتي و مزار ته ولاړه؛ او هغه ته نيږدې يې د «بېګمي دالان» په نامه ودانۍ جوړه کړه. وروسته يې د «مؤنس الارواح»، «خزاين الاصفيا» او «رسالهٔ صحبيه» په نامه اثار وکښل[۱۳]. که څه هم اورنګزېب خپله په شاهي دربار کي د شعر او شاعرانو د پخواني تشويق او ترغيب مخه ونيوله؛ خو لور يې (زيب النساء)، چي په شعر کې مخفي تخلص کاوه، همېشه د شاعرانو مادي او مانوي (معنوي) سيله کوله. دې په خپله هم د عرفاني ميني په جوش او خروش کي سوزناکي غزلي و ويلې، چي د مجازي ميني په جامه کې حقيقي مينه بيانوله[۱۴].

د محی الدين اورنګزېب عالمګير (۱۰۶۸هـ ق/ ۱۶۱۸ع - ۱۱۱۸هـ ق/ ۱۷۰۷ع) تر آمرانه او ظالمانه پاچهۍ پوري د هندوستان د ګورګاني مغولو او د دکن د خپلواکو پاچهانو دربارونه د سلطان محمود غزنوي د دربار په څېر د لويو شاعرانو، ليکوالو، مورخانو، پوهانو او هونرمندانو د کار او فعاليت مرکزونه وه. زموږ د تاريخي هيواد د هغه مهال پياوړو شاعرانو، ليکوالو، مورخانو، عالمانو، نقاشانو، خطاطانو، معمارانو او نورو نامتو استادانو هورې ادبي، علمي او هونري کارونه کول. بايزيد پوراني هروي، سلطانعلي اوبهي، عارف کابلي، عبدالصمد بدخشي، محمد صالح بدخشي، ياري هروي، ويکتا بلخي، آتشي کنداري، ميرمحمد معصوم نامي کنداري بکهري، سطان کنداري، حاجي عارف کنداري، خواجه زاده کابلي، سوسني کابلي، ارزاني، اماني کابلي، الله يار بلخي، تامش محمد کندوزي، اماني کابلي، فېروز کابلي، باقي بالله کابلي، بنايي کابلي، بېکسي غزنوي، جهانګير هروي، حسام الدين بدخشي، خواجه حسن، استاد فيضي، ساغري هروي، کاهي کابلي، ملاشاه بدخشي، شيدا بلخي، صبوحي بدخشي، صبوحي کابلي، نيازي بدخشي، عبدالرزاق مدرس کابلي، عزت هروي، عشقي کابلي، عوض محمد بلخي، عياني کابلي، غيوري کابلي، فاضل کابلي، فخري هروي، مير فخرالدين ميمنه ګي، فصيحه هروي، فيض هروي، کامل بدخشي، کمالي شبرغاني، لعلي بدخشي، مدعي بدخشي، ميرکلان هروي، ميرک هروي، نعمت الله هروي، هدايت بدخشي او ډېر نور د هغو شاعرانو، ليکوالو، مورخانو او فرهنګيانو په ډله کي وه، چي يوازي د خراسان يا اوسني افغانستان له بېلابېلو سيمو څخه د هندوستان د مغولي پاچهانو په دربارو کي په ادبي، علمي، هونري او فرهنګي چارو بوخت وه[۱۵]. پر دغو پياوړو او

مخکښو افغان فرهنګیانو سربېره، هندي، ایراني او تورک تېره شاعرانو، مورخانو او عالمانو هم په مغولي دربار او نورو خپلواکو پاچهیو او نوابیو کي ارزښتناک مقامونه لرل. په دې ډله کي ایراني شاعر، طالب آملي، د جهانګیر د دربار د ملک الشعراء مقام درلود[۱۶]. د دغو مغولي پاچهانو په زمانو کي د اسلامي عرفان، ادب، تاریخ، طبابت او نورو علومو په باره کي په زړه پوري او ارزښتناک اثار ولیکل سول، چي د ځینو لنډه او پاشلې یادونه یې د دې عصر د اجتماعي او فرهنګي حالاتو په پېژندنه کي بې ګټي نه ده:

– «بابر نامه» د ظهیرالدین محمد بابر اثر دئ، چي د «واقعات بابري» یا «توزک بابري» په نامه هم یاد سوئ دئ؛ او د (۸۹۹ – ۹۳۶ هـ ق) کلونو حالات بیانیي. دا کتاب اصلاً په چغتايي ژبه کښل سوئ دئ، چي وروسته یې ببلابېلي برخي د شېخ زین الدین خوافي (وفايي)، میرزا پاینده حسن غزنوي او محمد قلي حصاري له خوا په پارسي ترجمه سوي دي[۱۷].

– «همایون نامه» د ګلبدن بېګم په قلم کښل سوې ده، چي د پلار او ورور (بابر او همایون) د سیاسي حالاتو بیانونه لري[۱۸].

– «لطایف الطوایف» د علي کاشفي هروي اثر دئ، چي په (۱۵۲۹ع / ۹۳۶ق) کي لیکل سوئ دئ.

– حمید بن فضل الله په (۱۵۳۶ع) کي خپل «سیرالعارفین» وکښئ، چي د ځلورو سوو چشتیه او سهروردیه پیرانو د ژوند او اثارو په باره کي مالومات وړاندي کیږي.

– په (۱۵۳۹ع / ۹۴۶ ق) کي حکیم یوسفي هروي د دارو درملو او طبي نوخسو په باره کي خپل «ریاض الانشاء» کتاب و لیکئ. دې مؤلف د «جامع الفواید»، «بدایع الانشاء»، «طب یوسفي»، «فواید الاخیار»، «ستهٔ ضروریه»، «قصیدهٔ حفظ الصحه»، «علاج الامراض»، «ملحقهٔ علاج الامراض»، «دلایل النبض»، «دلایل البول»، «رسالهٔ ماکول و مشروب» په نامه نور طبي او علمي اثار هم تألیف کړي دي[۱۹].

– «تاریخ رشیدي» د میرزا محمد حیدر ګورګان تألیف دئ، چي په (۱۵۴۵ع / ۹۵۲ق) کي لیکل سوئ دئ.

– «سلسلهٔ احرار» د خواجه باقي بالله بن قاضي عبدالسلام کابلي له خوا و لیکل سو.

– په (۱۵۶۶ع / ۹۷۴ق) کي سید حسین خواجه نقیب الله نثاري بخاري د «شعراء مذکر احباب» په نامه تذکره وکښله[۲۰].

– عبداللطیف منشي په (۱۵۷۶ع / ۹۸۴ق) کي خپل «نفایسِ کلام و عرایس اقلام» و لیکئ، چي د خانډېش و وروستي خپلواک واکمن، راجا علي خان فاروقي، ته اهداء سوئ دئ[۲۱].

– «مقطع» د حاجي عارف کنداري هغه اثر دئ، چي په (۱۵۷۸ع/ ۹۸۶ق) کي لیکل سوئ دئ؛ او د سلطان

محمود غزنوي له زماني څخه يې د جلال الدين اکبر تر پاچهۍ پورې حالات بيان کړي دي. د دې مورخ بل مشهور اثر «مطلع يا تاريخ اکبري» نومېږي.

– «تاريخ شېرشاهي» د عباس سرواني تأليف دئ، چې په (۱۵۷۹ع/ ۹۸۷ق) يا (۱۵۸۶ع / ۹۹۴ق) کې بشپړ سوئ دئ. څنګه چې له نامه څخه يې ښکاري، د شېرشاه سوري د کورنۍ او پاچهۍ پر حالاتو خبري کيي.

– «واقعات مشتاقي» د سوري پاچهانو د حالاتو په باب د شېخ رزق الله تأليف دئ، چې په (۱۵۸۱ع / ۹۸۹ق) کال کې بشپړ سوئ دئ.

– قاضي نظام غازي خان بدخشي په (۱۵۸۴ع / ۹۹۲ق) کې د «شرح عقايد» حاشيې وکښلې.

– «فواتح الولاية» او «صلصة الجرس» هم په (۱۵۸۴ع / ۹۹۲ق) کال د ملاعالم ګلبهاري له خوا تأليف سول.

– «تاريخ افاغنه يا تاريخ خان کجو» په (۱۵۸۴ع/۹۹۲ق) کال د خواجو مليزي له خوا وکښل سو، چې وروسته يې لنډه بڼه د «تواريخ رحمت خاني» په نامه د پير معظم شاه په قلم خپره سوه.

– جوهر آفتابچي خپل «تذکرة الواقعات» په (۱۵۸۶ – ۸۷ / ۹۹۵ق) کې وليکئ، چې د همايون د پاچهي پر حالاتو خبري کيي[۲۲].

– مولانا سلېمان هروي انصاري په (۱۵۹۲ع / ۱۰۰۱ق) کې خپل «مقامات العارفين» او «مرآة السالکين» وکښل.

– «منتخب التواريخ يا تاريخ بدايوني» د ملا عبدالقادر بدايواني مشهور تاريخي اثر دئ، چې په (۱۵۹۵ع / ۱۰۰۴ق) کال، په درو ټوکو کې و ليکل سو. لومړی ټوک يې د بابر او همايون، دوهم ټوک يې د جلال الدين اکبر او دريم ټوک يې د مسلمانانو د ديني عالمانو، پوهانو، طبيبانو او شاعرانو د ژوند او اثارو په اړه خبري کيي.

– د نقشبندي صوفي، شېخ هاشم کشمي بن خواجه قاسم، تأليف «زبدة المقامات» په (۱۵۹۵ع / ۱۰۰۴ق) کې وکښل سو[۲۳].

– «اکبرنامه» چې دريم ټوک يې د «آيين اکبري» په نامه مشهور دئ، د اکبر پاچا د اديب، مورخ، منشي او وزير، ابوالفضل علامي يا ابوالفضل دکني مشهور اثر دئ، چې د دايرة المعارف په بڼه ليکل سوئ دئ؛ او د اکبر پاچا د پاچهۍ تر شپږ څلوېښتم کال (۱۰۰۹– ۱۰۱۰ق) پورې د مغولي امپراتورۍ پر سياسي، اجتماعي، فرهنګي، فکري او نورو برخو رڼا اچيي. «پيل پای»، «انشای ابوالفضل»، «رقعات»، «مجموع لغات» او «تفسير آية الکرسي» يې نور اثار دي.

– «توزک جهانګيري يا جهانګيرنامه» د بابرنامې په ډول وليکل سوه. دا کتاب د نورالدين سليم جهانګير د پاچهۍ تاريخي پېښې بيانيي. د دې کتاب د لومړيو اولسو

(۱۷) کالو خاطري په خپله د جهانګير له خوا کښل سوي دي. وروستۍ برخي يې د «اقبال نامې» د مؤلف، معتمد خان، او تر هغه وروسته د ميرزا هدايت خان له خوا بشپړي سوي دي.

- «طبقات اکبري» د خواجه نظام الدين احمد هروي له خوا تأليف سو.

- شېخ عبدالحق محدث دهلوي د صوفي مشايخو په باره کي د «اخبار اخيار» په نامه تذکره وليکله.

- په (۱۶۰۵ع) کي د «اخبار اصفيا» په نامه تذکره وکښل سوه، چي د دوو سوو پينځوسو (۲۵۰) صوفيانو پر ژوند او اثارو رڼا اچيي.

- په (۱۶۰۵ - ۱۶۱۶ع) کلونو کي د محمد غوث نظري په زيار د صوفيانو يوه بله تذکره وليکل سوه.

- محمد قاسم (په دېوانه سيد عطايي مشهور) د مشهور صوفي شخصيت، سيد جمال الدين، په باره کي د «مناقب الاخيار» په نامه کتاب تأليف کئ.

- محمد کبير بن محمد اسماعيل خپل «افسانهٔ شاهان» کتاب وليکئ، چي د لودي او سوري حکومتو بيانونه لري[۲۴].

- د بهيګ خان زوی احمد خان کنبو په (۱۶۱۱ع / ۱۰۲۰ق) کال په هند کي د پښتنو پر احوالو خپل «معدن اخبار احمدي يا مجمع التواريخ» وکښئ.

- په (۱۶۱۰ع / ۱۰۲۰ق) کي د ناپېژندل سوي مؤلف له خوا د روضې او برهانپور د اولياوو او مشايخو په باب د «فتح الاولياء» په نامه کتاب وکښل سو، چي په برهانپور کي د مغولو و نايب السلطنه (عبدالرحيم خانِ خانان) ته اهدا سوئ دئ[۲۵].

- د خواجه حبيب الله هروي زوی- نعمت الله هروي نورزي په (۱۶۱۳ع / ۱۰۲۱ هـ ق) کال د هند په برهانپور کي خپل مشهور تاريخي اثر «مخزن افغاني يا تاريخ خانجهاني» وليکئ.

- احمد يادګار هم خپل «تاريخ شاهي معروف به تاريخ سلاطين افاغنه» په (۱۶۱۳ع / ۱۰۲۱ق هـق) کي وکښئ.

- محمد غوثي په (۱۶۱۳ع / ۱۰۲۲ق) کي د «ګلزار ابرار» په نامه کتاب وليکئ، چي د ګجرات او غربي هند و صوفيانو ته اهدا سوئ دئ[۲۶].

- محمد صادق کاشميري همداني په خپل «کليمات الصادقين» کي د هغو يو سلو پينځه ويشتو صوفي پيرانو او مرشدانو احوال بيان کئ، چي په ديلي (دهلي/ ډهلي/ډيلي) کي ښخ دي(۱۶۱۴ع)[۲۷].

- «مآثر رحيمي» د عبدالباقي نهاوندي اثر دئ، چي په (۱۶۱۶ع/ ۱۰۲۵ق) کي وکښل سو. دا اثر په برهانپور کي د مغولو و نايب السلطنه (عبدالرحيم خانِ خانان) ته اهدا سوئ دئ؛ او د هغه په دربار کي د پارسي ژبو شاعرانو د ژوند او اثارو په اړه مالومات وړاندي کيي[۲۸].

- محمد صادق همداني د اووه اتيا صوفيانو د ژوند او اثارو په اړه د «طبقات شاه جهاني» په نامه تذکره وکښله.

- بدرالدين سرهندي د نقشبنديه طريقې د پيرانو د احوال په باره کې د «حضرت القدس» په نامه فرهنگ وليکئ.

- پيرمحمد حنيف پلوسي په (۱۶۲۰ع / ۱۰۳۰ ق) کې «مجموعهٔ تاريخ افغانان» اثر وکښئ، چې موضوعات يې له مخزن افغاني، مخزن اسلام او تذکرة الابرار و الاشرار څخه اقتباس سوي دي.

- ابراهيم بيټني په (۱۶۲۰ع / ۱۰۳۰ ق) کال «الحاقات بر مخزن افغانی» وليکئ.

- مير جمال الدين حسين بن فخرالدين حسن انجو شيرازي په (۱۰۳۲ق) کې خپل لغوي قاموس «فرهنگ جهانگيري» و مغولي امپراتور (جهانگير) ته اهداء کئ، چې اصلاً په (۱۰۱۷ق) کې بشپړ سوئ ؤ.

- هندو ليکوال، اپرآو بهولانات، په (۱۶۴۱ع) کې د «صاحبيا» په نامه اثر تأليف کئ.

- په (۱۶۴۶ - ۱۶۵۷ع) کلونو کې الهديه بن عبدالرحيم چشتي عثماني خپل کتاب ته «سيرِ الاقطاب» نوم ور کئ، چې د اووه ويشتو (۲۷) مسلمانو پيرانو د ژوند او اثارو په اړه مالومات وړاندې کيي.

- «تواريخ افغان» په (۱۶۲۲ع / ۱۰۳۳ ق) کې د حسين خان له خوا په پښتو او پارسي ژبو تأليف سو.

- «تاريخ داودي» د عبدالله له خوا وکښل سو، چې د لودي او سوري پاچهانو د احوالو په باب خبري کيي.

- رشيد خان توني په (۱۶۵۲ع / ۱۰۶۳ ق) کې د داراشکوه په مشرۍ د مغولي لښکرو له خوا د کندهار د کلابندۍ په باره کې خپل «لطايف الاخبار يا تاريخ قندهار» وکښئ[۲۹].

- مؤبد کيخسرو اسفنديار زردشتي په (۱۶۵۳ع / ۱۰۶۳ ق) کال خپل مشهور اثر «دبستان مذاهب» تأليف کئ، چې د بېلابېلو اديانو او فکري ډلو پر نظريو او عقايدو سربېره د روښانيانو د عرفاني نظريو او مغولي ضد مبارزو په باره کې هم پراخ او په زړه پوري مالومات وړاندي کيي.

- ملا عبدالحميد لاهوري «بادشاه نامه» وکښله، چې د شاه جهان د پاچهۍ د لومړيو شلو کالو تاريخ ښيي.

- «عمل صالح يا شاه جهان نامه» د محمد صالح کنبو (کمبو) له خوا وکښل سوه، چې د شاه جهان د پاچهۍ بشپړ غيرسرکاري تاريخ ګڼل کيږي[۳۰].

- په (۱۶۵۴ع) کې د عبدالرسول چشتي له خوا د «مرأت الاسرار» په نامه تصوفي اثر ميدان ته را ووتئ. دې ليکوال وروسته د مهانپور د شاه مدار په باب د «مرأت مداري» په نامه تذکره هم وليکله[۳۱].

- علاء الدين محمد چشتي برنوي په (۱۶۵۵ - ۱۶۵۶ع) کې د چشتيه طريقې د پيرانو پر احوال خپل «چشتيه بهشتيه» اثر وليکئ.

- محمد امين بدخشي د نقشبنديه طريقې د صوفيانو د ژوند او زده کړو په اړه د

«مناقب الحضرات» په نامه کتاب تصنیف کړ.

- محمد بقا سهارنپوري په (۱۶۷۹ - ۱۶۸۰ع) کي د راشدو خلیفه گانو، امامانو او صوفیانو په باره کي خپل تألیف ته «ریاض الاولیاء» نوم ور کئ.

- شېخ محمد غوث گوالیاري د تصوفي نظریو په اړه د «کلید مخازن» په نامه اثر وکښئ.

- شېخ جلال الدین تانیسري د وحدت الوجود په باب «ارشاد الطالبین» رساله ولیکله.

- د وحدت الوجود په باره کي د «معارف لودهیانه» په نامه بل کتاب هم وکښل سو.

- په المجدد الف ثاني ملقب، شېخ احمد کابلي سِرهندي (۹۷۱هـ ق/ ۱۶۲۴ع - ۱۰۳۴هـ ق/۱۶۶۴ع) مکتوبات امام رباني (ټول پینځه سوه شپږ دېرش خطونه یا مکتوبونه، چي په درو ټپلو ټوکو کي اوډل سوي دي) او «اثبات نبوة» اثار ولیکل.

- محمدصدیق کشمي د شېخ احمد کابلي سِرهندي له افاداتو څخه «مبداء او معاد» ولیکئ.

- په (۱۶۵۲ع) کي له داراشکوه سره د بابالال د مباحثو او مناظرو کتاب ولیکل سو.

- په همدې زمانه کي د اوولسمي پېړی د صوفي لاربنود، شاه کلیم الله اکبرآبادي «ملفوظات» نومی اثر میدان ته را ووتئ[۳۲].

- سید نظام الدین محمد معصوم نامي کنداري بکهري «تاریخ سند یا تاریخ معصومي» ولیکئ. له سید معصوم نامي څخه پر «تاریخ سند یا تاریخ معصومي» سربېره نور ارزښتناک اثار هم پاته دي، چي د ځینو نومونه یې دا دي: «طب نامي»، مفردات معصومي (په طب کي)، د اشعارو دیوان او د «معدن الافکار»، «حسن و ناز»، «اکبرنامه» او «پري» په نامه څلور مثنوي گاني[۳۳].

باید هېر نه کو چي په هندوستان کي تر مغولي پاچهانو مخکي هم و ادب، تاریخ، اسلامي علومو، هونري او فرهنگي ارزښتو ته په ډېره درنه سترگه کېدل. له غوري پاچهانو څخه را نیولې بیا تر لودي او سوري پاچهانو پوري ټول شاهي دربارونه د ادب، پوهي او اسلامي ثقافت د ودي او پرمختگ لوی مرکزونه وه[۳۴]. د بېلابېلو هیوادو او سیمو د پوهي، تفکر، هونر او ذوق خاوندانو و خپلو علمي، فکري، ادبي او هونري متاعو ته د ارزښتناکو بیو د تر لاسه کولو دپاره و هندي دربارو ته مخه نیوله[۳۵]. د مثال توگه د خواص خان زوی، میابهوه، خپل «معدن شفای سکندري یا طب سکندري» د ادبپالونکي پښتون پاچا - سلطان سکندر لودي (۱۴۸۹ - ۱۵۱۷ع) په تشویق او ترغیب له سنسکریت ژبي څخه و ژباړئ، چي په خپله هم شاعر ؤ؛ او په شعر کې «گلرخي» تخلص کاوه. محمد بن شېخ هم د سکندر لودي په تشویق د «تحفة سعادت» په نامه پارسي فرهنگ ولیکئ، چي و سلطان

سکندر لودي تې د اهدا کولو له جهته «فرهنگ سکندري» هم بولي[٣٦]. د سلطان سکندر لودي د علمي څوَب او ادبپالني له برکته ؤ، چې ايراني عالِم، رکن الدين شېرازي، د هغه وخت لوی متفکرين (د ملتان شېخ عبدالله تولنبي او شېخ عزيزالله) او د «سيرالعارفين» او «مثنوی مهر و ماه» ليکوال (په شېخ جمال الدين کانبو مشهور، شېخ جمال الدين دهلوي) يې دربار ته ورغلل. شېخ عبدالقدوس گنگوهـ هم د دې دورې لوی عرفاني او روحاني شخصيت ؤ، چې په هندوستان کې د گورگاني دولت د تاداو ايښوونکي- ظهيرالدين محمد بابر (۱۴۸۳ - ۱۵۳۰ع) په مقابل کې د سلطان ابراهيم لودي ملاتړ وکړ[٣٧].

شک نسته چې د مغولي پاچهانو په زمانو کې له توركيې، عربو، مرکزي اسيا، ايران، پخواني افغانستان او نورو سيمو څخه د علمي، فکري، ادبي او هونري استعدادو تښته تر پخوا هم تېزه او زياته سوه؛ ځکه د هندوستان د مغولي امپراتورانو او دکن مېشتو پاچهانو دربارونه د سيمي د شاوخوا هيوادو د واکمنو رژيمو له سياسي- فکري خوروني، اجتماعي، فرهنگي او اقتصادي ناخوالو څخه د ژغورني يوازني خوندي او سوکاله مرکزونه گڼل کېدل. د مختلفو سيمو او هيوادو د پوهي او کمال خاوندانو د هندوستان د واکمنو دربارو په نسبتاً ازاده او سوکاله فضا کي نه يوازې علمي، عرفاني، ادبي او فرهنگي اثار تخليقول، بلکي د هغو د مادي او مانوي ملاتړ تر سيوري لاندي يې د شېرازی او سوکالی ژوند تېراوه. البته، هندوستان و تاج و تخت. ته د اورنگزېب عالمگير تر رسېدو وروسته نه يوازي په مغولي دربار کي پخواني علمي- فرهنگي کوښښونه له لويو خنډونو او ځنډونو سره مخامخ سول، بلکي د هندي ټولنې پر سياسي، اجتماعي، کلتوري او مدني ژوند هم د زيندی کولو او زورزياتي تور پلو و غوړېدئ. چل ول او توطيه، د عقايدو پلټنه او له مخالفينو سره ظالمانه چلن د اورنگزېب د دربار په رسمي سياست واو ښتل. هندی ليکوال او څېړونکی، ډاکټر ج. ن. چودهري، په يوه څېړنه کي د «اورنگزېب» پر فکري جوړښت د هغو اجتماعي - فرهنگي بدلونو اغېزه له پامه نه غورځيي، چي د هغه مهال په هندي ټولنه کي د شېخ احمد سرهندي المجدد الف ثاني او د هغه د افراطي پيروانو له خوا را منځ ته سول؛ او هدف يې د شريعت له اصولو سره د مسلمانانو د دود و دستور برابرول ؤ. دی زياتيي: د شېخ احمد سرهندي زوی، خواجه محمد معصوم، د شاه جهان په وخت کي له شازاده اورنگزېب سره نيژدې تعلقات لرل؛ اورنگزېب او درباريانو يې ډېر درناوی کاوه؛ د اسلامي شريعت په اړه يې نظريې او مشورې ځني غوښتې. خواجه محمد معصوم او د هغه زوی، محمد سيف الدين، د تر پاچا کېدو وروسته هم له اورنگزېب سره ټينگ اړيکی و ساته. دغو ارتباطاتو د يوه سخت اسلامي نظام په خپرولو کي د اورنگزېب پر شخصي

عقایدو او دولتي سیاستو ژور اثر ښندلی وُ[۳۸].

د مکار او خونریز اورنګزېب په سیاسي او فرهنګي دستګاه کې د متعصبو مذهبیونو او محتسبینو د پراخ نفوذ له کبله د هندي ټولنې په فکري او عرفاني حلقو کې پخوانۍ ازادۍ له یوې مخې تر خاورو لاندې سوې. لوی استاد - اروانباد علامه حبیبي (۱۲۸۹ش/ ۱۹۱۰ع - ۱۳۶۳ ش/ ۱۹۸۴ع) په یوه څېړنه کې دې مسألې ته په اشارې سره لیکلي دي، چې د مغولي دربار واکمنانو قاضي عبدالقوي سرمد او د پارسي ژبې شاعر، میرزا مظهرجان جانان، د هغو د شخصي عقایدو او سپینو خبرو په خاطر په دار و ځړول؛ او په دې توګه یې په دولسمه پېړۍ کې د حسین منصور حلاج د بېرحمانه وژلو هنګامه له سره تکرار کړه[۳۹]. ایراني لیکوال او څېړونکی، ډاکټر ذبیح الله صفا، هم په خپل مشهور اثر «تاریخ ادبیات در ایران» کې دې ته ورته بیان لري، چې یادونه یې دلته بې ګټې نه ده. دی کاږي چې د دیني عالِم (شېخ احمد سرهندي) اِو نورو متعصبانو له خوا د پارسي ژبې پر صوفي شاعر، ناصر علي سِرهندي (په ۱۱۰۸هـ ق کې مړ)، د هغه په ټاټوبي (سِرهند) کې مخامخ تېري وسو. له نېکه مرغه میرمحمد زمان راسخ سرهندي یې ملاتړ وکړ؛ د خپلو وفادارو وسله والو په کومک یې د جنګ له میدانه وایستئ؛ او په تراټ یې تر شاه جهان اباده ورسوئ[۴۰]...

اورنګزېب د یوه سرسخت او متعصب مسلمان په توګه، غوښتل هندوستان غوندي ګڼ توکمه او ګڼ مذهبه ټولنه د نېزې او برچې په زور له دارالحرب څخه و دارالاسلام ته واړيي؛ او په پای کې پر ټولو اوسېدونکو د یوه سخت او جدي اسلامي نظام اصول او احکام نافذ کي. په دې خاطر یې د نوروز لمانځنه بنده او د هغه زردشتي تقویم مخه و نیوله، چې پلار و نیکه یې کاراوه؛ د بنګو له کرهنې څخه یې هم خلګ منعه کړل؛ په لویو ښارو کې د محتسبینو بېلابېلې ډلي و ټاکلې، چې د شرابو چښلو، خومار (قمار)، زنا او داسې نورو اسلامي ضد کارو مخنیوی وکي[۴۱]. دې مذهبي ډلو دغه راز واک لاره، چې د کوپر (کفر) ویلو، بدعتي نظریو، د لمانځه او روژې قضا کولو یا نورو دیني وجایبو د سرغړوني په خاطر و خلګو ته ډول ډول جزاوي ورکي. اورنګزېب د دې احکامو د تطبیق په لړ کې د طریقت سالکان او شیعه مسلمانان هم بې ازاره پرې نښوول؛ سندرغاړي، سازیان او نڅېدونکي یې ګرده له درباره و شړل، خو شراب څښل یې تر پایه بند نکړای سول. «د مغولو حریم» لیکوال، پروفیسر ک. ایس. لال، په دې اړه داسې لیکي: «په مغولي دربار کې له مشر وزیر څخه تر کوچني منصبدار پوري ټولو نجباوو شراب چښل. اورنګزېب خپله هم په دې حقیقت ښه خبر وُ. هغه غوښتل چې لږ تر لږه خپل مشر وزیر، جعفر خان، له شراب چښلو څخه منعه کي، خو دا ارمان یې هیڅکله تر سره نسو[۴۲].

د اورنګزېب سختو اسلامي قوانینو هندوان، سیکان او د نورو دینو پیروان هم له راز راز مشکلاتو سره مخامخ کړل. په ۱۶۵۹ع کال یې په بنارس کې د هندوانو د نوو معبدو د ودانولو او رغولو مخه ونیوله؛ خو پخواني معبدونه یې وران نه کړل. په ۱۶۶۴ع کال یې حتا د پخوانو معبدو د سمولو او ترمیم چارې هم بندې کړې. په ۱۶۶۹ع کال یې د غیرمسلمانانو د زده کړې او غونډو مرکزونه هم اوجاړ کړل. دا لا څه چې په مطیع او وفادار جیپور کې هم شپږ شپېته (۶۶) معبدونه په کنډوالو واړول؛ په درسته مغولي امپراتورۍ کې پر بې شماره معبدو سربېره، د بنارس «وېشواناتا»، د ماتهورا «کیشودیو» او د پاتن «سومنات» معبدونه هم وران کړل، چې په هندوانو کې ډېر لوی نوم او نښان لاره. په دې ګردو ورانکاریو یې هم غاړه و نه ایسته. تر ۱۶۷۹ع کال وروسته یې ټول هندوان و جزیې ور کولو ته هم اړ کړل. د اورنګزېب ظالمانه مالیو د غیرمسلمانانو ملاوې ور ماتې کړې. ځینو یې د همدې ملا ماتوونکي بار د ایسته کولو دپاره په پای کې د اسلام دین و مانه. عجبه خو لا دا چې، اورنګزېب د یوه فرمان په نافذولو سره بې راجپوتو، نور ټول هندوان په جوپانو کې له کښېنستو او پر ښو اسانو باندې له سپرېدو څخه هم منعه کړل(۴۳).

د اورنګزېب پاچهي که د مځکنۍ پراختیا او لویوالي له پلوه د مغولي امپراتورۍ تر ټولو پرتمینه او شانداره دوره وه، خو د سیاسي انحطاط او زوال ورځې یې هم له همدې وخته شرو سوې. د هغه سخت چلن او تبعیضي سیاست د مغولي امپراتورۍ په ډېرو اتباعو (هندوانو او سیکانو) کې سخت اعتراضونه او غبرګونونه را وپارول. سیکانو خو د دې تبعیضي سیاستو په مقابل کې و وسلو ته هم لاس واچاوه(۴۴).

د اورنګزېب سیاسي، اجتماعي، فکري او فرهنګي اختناق د هندوستان په پارسي ادبیاتو کې د یوه بېلي لارې یا سبک له را پیدا کېدو سره مرسته وکړه، چې د دې ژبې په تاریخ کې د «هندي سبک» په نامه یادېږي. سیاسي مخالفانو، عرفاني شاعرانو او متفکرو لیکوالو د ټولني واکمن سانسور او تفتیش ته په پام سره خپلې سیاسي، عرفاني او فلسفي نظریې د ابهام او موشګافییو په پردو کې ونغښتلې. د جسمي او فکري تمامیت ساتنې په مخسد دې افراطي سبک په پای کې د پارسي ادبیاتو و پخوانۍ سادګۍ او روانۍ ته لوی زیان ورساوه؛ د شعر او هونر پخوانۍ خوږوالی تر مبهمو بیانونو او غامضو مانا وو جار سو. میرزا عبدالقادر بیدل عظیم آبادي پټنوي، ناصرعلي سرهندي، نورالدین ظهوري او ځیني نور له هغو وتلو او منلو شاعرانو څخه دي، چې هندي سبک یې په هند کې و خپل کمال او معراج ته ورساوه.

د اورنګزېب دربار د شعر، موسیقۍ، هونر، ادب او عرفان پر ځای و فقهي او مذهبي چارو ته پام واړاوه. د پاچهۍ تر لومړیو یوویشتو کلونو پورې یې حتا پر تاریخ لیکنې هم بندیز لګولی و. سره له دې

هم په دې دوره کې مهم کتابونه و لیکل سول، چې د ځینو نومونه یې دا دي:

- میرزا محمد کاظم د اورنګزېب د پاچهۍ د لومړیو لسو کالو رسمي تاریخ و لیکئ. چې «عالمګیر نامه» یې بولي. د اورنګزېب د پاچهۍ د ټولي دورې بل رسمي او دولتي تاریخ د محمد ساقي مستعد خان له خوا د «مآثر عالمګیري» په نامه د اورنګزېب د زوی، بهادرشاه اول، په زمانه کې ولیکل سو.

- عاقل خان راضي د «ظفرنامهٔ عالمګیري یا واقعات عالمګیري» په نامه خپل تاریخ وکښئ.

- «اورنګزېب نامه» د هغه منظوم اثر نوم دئ، چې حقیري نومي مغولي عسکر لیکلی او د داراشکوه تر اعدام پورې یې د اورنګزېب د اقتدار غوښتني ټول جنګونه پکښې راوړي دي.

- محمدهاشم خافي خان د «منتخب اللباب» په نامه تاریخي اثر و لیکئ، چې د اورنګزېب د پاچهۍ په ګډون یې د تیموري کورنۍ حالات بیان کړي دي.

- د اورنګزېب د دربار هندو مورخ، بهیمسن، د «نسخهٔ دلکشا» په نامه تاریخي اثر تالیف کئ، چې په دکن کې د مغولي پاچهانو د یرغلګرو جنګو او اشغالګرو کوښښو عیني داستان دئ.

- د دربار بل هندو ملازم، ایشور داس، د «فتوحات عالمګیري» په نامه اثر وکښئ، چې د اورنګزېب د پاچهۍ پر مهال د راجستان حالات څېړي.

- شهاب الدین احمد د بِهار او آسام په باب «فتحیه ابریه» کتاب تألیف کئ.

- میر محمد معصوم د بنګال په اړه «تاریخ شاه شجاع» او د ګولکونډې د کلابندۍ په باره کې د «واقعهٔ نعمت علي خان علي» کتاب تصنیف کئ (۱۶۸۷ع کال).

- «خلاصة التواریخ» د سجان رای پټیالوي له خوا ولیکل سو، چې له سبتګین څخه د اورنګزېب تر وخته حالات بیانیي[۴۵].

- حمیدالدین د اورنګزېب د ژوند، شخصیت او احکامو په باره کې «احکام عالمګیري» کتاب انشأ کئ.

- د علي محمد خان له خوا د ګجرات د حالاتو په باب، په درو ټوکو کې «مرآت ارمادي» ولیکل سو.

- «تواریخ بنګاله» د سلیم الله خوا تألیف سو.

- «آداب عالمګیري»، «احکام عالمګیري» د عنایت الله خان له خوا ولیکل سول.

- «کلیمهٔ طیبه»، «کلیمهٔ اورنګزېب»، «ظاهر انشاء»، «بهارسکون»، «هفت انجمن» او «واقعات حمیدالدین خان» د کتابو په بڼه غونډ سوي تاریخي خطونه وه، چې په دې دوره کې تدوین او تألیف سول.

- د اسلامي فقهي مشهور اثر «فتاوای عالمګیري» هم د اورنګزېب په پاچهي کې ولیکل سو[۴۶].

– نواب صمصام الدوله شهنواز خان اورنگ آبادي او د هغه د زوی عبدالحي خان د مغولي دربارو د ببلابېلو تاريخي اثارو پر اساس خپل ارزښتناک اثر «مآثرالامرا» تألیف کئ، چي وروسته د آزاد بلګرامي له خوا بشپړ سو. دا مهم تاريخي اثر په (۱۵۵۶ – ۱۷۸۰ع) کلونو کي د مغولي امپراتورانو د بېلابېلو واکمنانو د ژوند اړخونه او کارنامې بيانيي. په دې اثر کي د پير روښان د لمسي، الله داد رشيد خان، په ګډون د ځينو پښتنو واکمنانو د ژوند او کارنامو په باب هم ارزښتناک مالومات راغلي دي.

د شمالي هند د مغولي پاچهانو د ادبي او فرهنګي فعاليتو تر څنګ د دکن په پينځو خپلواکو پاچهيو (احمدنګر، بيجاپور، بيرار، ګولکونډه او بيدر) کي هم د پوهي، عرفان، ادب، هونر، موسيقۍ او معمارۍ بازار خوار ګرم ؤ. په علمي او فرهنګي بهير کي د دې پينځو سلطنتو تر ټولو ارزښتناکه ونډه د دکني/ دکهني / Dakhini) (Dakkhani / Deccani ژبي له هر اړخيزي ودي او پرمختګ سره پراخه مرسته وه، چي د بهمني سلطنت په زمانه کې تاداو ايښوول سوئ ؤ. دکني ژبه له عربي، پارسي، مراټهي/مراټي[۴۷] (Marathi)، کانډا[۴۸] (Kannada) او تېلوګو[۴۹] (Telugu /Telegu) ژبو څخه جوړه سوې ژبه ده، چي د بهمني پاچهۍ تر تجزيې وروسته د دکن د خپلواکو پاچهانو د پېرزوينې له برکته و شفاهي بشپړتيا او ادبي پرمختګ ته و رسېده. دکني ژبه وروسته د شمالي هند له اوردو ژبي څخه د جلاوالي په خاطر د دکني اوردو په نامه مسما سوه. اوس د دکن د سيمي ميليونونه وګړي (په ۲۰۰۷ع کي ۴، ۱۱ ميليونه) په دې ژبه خبري او ليکني کيي. د بيجاپور د عادلشاهانو په زمانه کي په دکني ژبه خورا ډېر اثار وليکل سول. ابراهيم عادلشاه په خپله شاعر، خطاط او لوی موسيقي پوه ؤ. د «نَوْرَس» په نامه يې د موسيقۍ د راګونو يو کتاب وليکئ. د پارسي ژبي مشهور شاعر، نورالدين ظهوري، د عادلشاهانو د دربار ملک الشعراء ؤ. ويل کيږي په هند کي د مشاعرې جال هم واردواره په همدې بيجاپورکي شرو سوئ دئ، چي وروسته بيا سوکه سوکه د هند و شمالي خواوو ته و غزېدئ. لنډه دا چي د دکن شاهي دربارونه هم د اګرې او ديلي د مغولي دربارو په شان هيڅکله له شاعرانو، مورخانو او عالمانو خالي نه وه. محمود، فيروز، فهامي، قيصري، رونقي، محمد امين، غواصي، خيالي، قبطي، ابن نشاطي، مقيمي، شوقي، نصرتي، هاشمي، اياغي، نوعي خبوشاني او ډېر نور د دکن د خپلواکو سلطنتي دربارو مشهور او نوميالي شاعران وه. محمدقاسم هندوشاه، سيدعلي طباطبايي، ملا ملک قسمي او داسي نور يې د نامتو مورخانو په ډله کي وه. د ګولکونډې پاچا، ابراهيم قلي قطب شاه پر پارسي او دکني ژبو سربېره حتا د تېلوګو ژبي د ادبياتو له ودي او پرمختګ سره هم ډېره مرسته وکړه. ده نه يوازي د پوهي او فرهنګ پالنه او رزونه کوله، بلکي په خپله هم پياوړی شاعر

ؤ. په دکني ژبه کې د «کلیات محمد قلي قطب شاه» په نامه لوی شعري دیوان پرېښاوه[۵۰].

د دکن د خپلواکو پاچهانو په سپارښتنه او تشویق د پوهي او فرهنګ په بېلو بېلو برخو کې خورا ډېر اثار ولیکل سول، چې دغه څو یې یوازې په تاریخ لیکنه کې د یادوني وړ دي:

- سیدعلي طباطبایي په (۱۵۹۶ع/ ۱۰۰۴ق) کې د دکن د ایالتي سلطنتو، په تېره بیا بهمني او نظام شاهي کورنیيو په باره کې د «برهان مآثر» په نامه اثر ولیکئ.

- «تاریخ فرشته یا ګلشن ابراهیمي» د محمدقاسم هندوشاه استرآبادي تألیف دئ، چې په (۱۶۰۶- ۱۶۲۴ع/ ۱۰۱۵ق - ۱۰۳۳ق) کې د بیجاپور د پاچا، ابراهیم عادلشاه، په نامه کښل سوئ دئ: او د هندوستان د عمومي تاریخ، په تېره بیا د دکن د پاچهانو (بهمنیانو، عادلشاهانو، نظام شاهانو، قطبشاهانو، عمادشاهانو او بریدشاهانو)، د ګجرات د شاهانو، د مالوې د واکمنانو، د خاندېش شاهانو (د برهانپور د فاروقي سلاطینو) او داسي نورو کوچنیيو پاچهیيو په باره کي ارزښتناک مالومات وړاندي کيي. له دې کتاب سره د صوفي شېخانو د ژوند او اثارو د پېژندني په باب هم خورا ګټوره ضمیمه ملګرې ده.

- «منشآت شاه طاهر» د رسمي مکتوبو هغه مجموعه ده، چې د احمدنګر د دربار د مشاور، شاه طاهر په قلم لیکل سوې ده.

- «تذکرة الملوک» د رفیع الدین ابراهیم شیرازي تألیف دئ، چې په (۱۶۱۱- ۱۲ع / ۱۰۲۰ق) کي د بیجاپور د تاریخ په اړه و کښل سو.

- حبیب الله د ګولکونډې د سلطنت په باب خپل «قطب شاهي» تاریخ تألیف کړ.

- نورالله د بیجاپور د عادلشاهانو په اړه د «عادلشاه ثاني» په نامه تاریخ ولیکل سو.

- «محمدنامه» د ظهورالدین ظهوري په قلم ولیکل سوه، چې د بیجاپور د عادل شاهي سلطنت حالات بیانیي.

د دکني میناتورۍ او نقاشۍ هونر، چې د احمدنګر، بیجاپور او ګولکونډې په دربارو کې و خپل عروج او کمال ته ورسېدئ، د سیمي په فرهنګي بهیر کي د دغو پینځو خپلواکو سلطنتو بله ارزښتناکه او په زړه پوري برېا ګڼله کیږي. «تعریف حسین شاهي»، «انوارِ سوهیلي»، «سندبدنامه»، «نجوم العلوم»، «جواهرِ موسیقات محمدي» او داسي نور د دې عصر د میناتوري اثارو ځیني خطي مجموعې دي، چې تر اوسه د نړۍ په ځینو موزیمو او کتابتونو کي د ډېرو قیمتي اثارو په توګه ساتل کیږي[۵۱].

د جنوبي هند په فرهنګي اعتلا او ارتقا کي د دې خپلواکو پاچهیيو بله مهمه ونډه هغه شانداره معماري ده، چې ځیني اثار یې تر اوسه هم پر خپل پخواني صلابت او مهابت پاته دي. «چار منار»، «ګل ګنبذ»، «جامي مسجد»، «مکه مسجد»، «فرح باغ»، «چیني محل»، «ګګن محل»،

«سات منزل»، «جل منډير»، «آنند محل»، «اثر محل» او داسي نور ټول د دې عصر له پرتمينو معمارييو څخه ګڼل کيږي[52].

پر دې ټولو ادبي، علمي او فرهنګي پرمختګو سربېره د بيدر دکني سلطنت د بېلا بېلو فلزاتو په ګډولو سره د فلزکارۍ په صنعت کي هم يو خاص تخنيک اختراع کړئ ؤ، چي په ټوله سيمه کي مروج او مشهور ؤ[53].

د دکن زياترو پاچهانو تورکي – ايراني ريښې لرلې: ځکه يې نو په ادب، هونر، موسيقۍ او معمارۍ کي هم ايراني بڼه او جوله له ورايه ښکاره وه. د شمالي هند له سُني مذهبه پاچهانو او واکمنانو سره يې د دوستۍ او نيژدې والي پر ځای د ايران له صفوي پاچهانو سره نيژدې راشه درشه لرله[54]. دې پاچهانو د خپلي تورکي ختې او ايرانپالني تر څنګ په ژبنيو، فرهنګي، مذهبي او فکري چارو کي د زغم او پېرزوينې لوی نوم ګټلئ ؤ. عادلشاهانو د نورو توکمونو، اديانو او مذاهبو پر استازو سربېره و هندوانو ته هم په خپل حکومت کي لوی منصبونه ور کړي وه. د محاسبې او ادارې چاري يې زياتره د هندوانو په لاس کي وې؛ ځکه په دغو برخو کي هر څه په مراټي ژبه ليکل کېدل، چي نورو چندان مهارت نه پکښې لاره. د تصوف او طريقت په برخه کي هم د هر چا دود او دستور ته په درناوي کتل کېدل. د دکني پاچهانو دې فکري او فرهنګي ازادخيالۍ اورډې ريښې لرلې؛ ځکه

د دکن تر خپلواکو پاچهييو مخکي بهمني پاچهانو هم له پارس او عراق څخه و خپل دربار ته د طريقت پيران او پېشوايان ور بلل. په دربار کې تر هنديانو د بهرنيانو يا آفاقيانو خاطر ډېر ساتل کېدئ. نعمت الهي طريقه په بيدر کي د نعمت الله ولي له خوا پيل سوه. قادريه طريقه له بغداده و بيدر ته راغله، چي وروسته په بيجاپور او ګولکونډه کي هم خپره سوه. د چشتيه او قادريه طريقو پيروان هم تر ابراهيم عادلشاه وروسته، په بيجاپور کي مېشت سول. د عبداله شاه د شطاري طريقت پيروان هم د هند له شمالي برخو څخه و دکن ته ور وکوچېدل: او په بيجاپور او برهانپور کي ځان ته ځلا مرکزونه جوړ کړل. په دکن کي د ګورګاني دولت تر واک غزېدو وروسته د مجددي – نقشبندي طريقت د مشر شيخ احمد سرهندي پيروانو هم و برهانپور ته مخه کړه؛ د آورنګ آباد او بيرار په خانقاوو کي د نورو صوفي پيرانو او مرشدانو له خوا نوی نقشبندي طريقت باب سو[55].

د يادوني وړ ده چي دا مهال د هندوستان د مغولي دولت او د دکن د خپلواکو پاچهييو تر څنګ د پښتونخوا په غرو او مېرو کي هم د پوهي او ادب د ودي او پرمختيا په لار کي ارزښتناک ګامونه پورته سول. د روښاني غورځنګ مشرانو (پير روښان، خليفه مودود، ملا ارزاني او داسي نورو) د پښتو ادب په تاريخ کي ځلانده باب پرانيستئ، چي وروسته هند مېشتو روښاني شاعرانو او ليکوالو په خپلو عرفاني نظريو،

ادبي او تاريخي اثارو سره د هغه ارزښت څو چنده نور هم زيات کړ؛ پښتو ادب يې له علمي، عرفاني، ادبي او تاريخي اړخه و لوړو پوړيو ته ورساوه. د روښانيانو تر څنګ ډېرو نورو پښتنو شاعرانو ليکوالو، مورخانو او عالمانو لکه اخون قاسم شينواري پاپنيخېل، بي بي نېکبختي، شېخ بوستان بړيڅ، الله يار بن شېخ صالح الکوزي، ملا الف هوتک، اخون درويزه ننګرهاري، کامران خان سدوزي او ډېرو نورو هم هر يوه په خپل وار سره د پښتو ادب د دې تاريخي دورې په پرمختګ کې ارزښتناکه برخه واخيسته، چې دا بهير وروسته د خوشال خان خټک، د هغه اولادو او نورو معاصرانو په رامخ ته کېدو سره د لوړتيا او بشپړتيا بېساري مزلونه و وهل؛ خو پښتو ادب پر دې ټول برم او پرتم سربېره هم د دې مهال له پارسي ادب سره د پرتلې وړ نه ؤ؛ ځکه د پښتون قام پر اوږو په ځينې کې د مغولي او په لوېديځ کې د صفوي امپراتوريو له ظالمانه تاړاکونو سره د مقابلې او مبارزې دروند پېټی پروت ؤ. په دواړو جبهو کې د پردو اشغالګرو پر ضد د ملي واکمنۍ او سياسي خپلواکۍ وياړلي معرکې او مبارزې رواني وې. دا ګرې، ديلي او دکن د سلطنتي دربارو پر خلاف و پښتنو شاعرانو، مورخانو او پوهانو ته د هغو د علمي او ادبي اثارو په بدل کې انعامونه او خلعتونه نه ورکول کېدل. پښتنو ته د استعماري يرغلګرو د جنګ او ناارامۍ، درنو ماليو او شنه زور په غملړلو شرايطو کې د پوهي او فرهنګ د ډېرو روښانه ساتل څه اسانه خبره نه وه.

د علي محمد مخلص د هلکېنۍ ځوانۍ او پخښت کلونه د نورالدين سليم جهانګير او شهاب الدين محمد شاه جهان د پاچهيو په زمانو کې تېر سول. د محی الدين اورنګزېب عالمګير د پاچهۍ په توره او مختنقه دوره کې د ژوند وروستي کلونه تېرول. بې اورنګزېبه چې له سياسي، مذهبي او فکري ازادۍ سره يې سخته دوښمني پالله، نورو ګورګاني پاچهانو – له ظهيرالدين محمد بابر او همايون څخه تر اکبر، جهانګير او شاه جهانه پوري – هر يوه په بېلو بېلو درجو د اشغالګرۍ او وينو تويولو تر څنګ له پوهي، ادب، هونر او ترقۍ سره هم مينه لرله. همدا وجه وه، چې د مغولي پاچهانو، په تېره بيا اکبر، جهانګير او شاه جهان په پاچهيو کې پر اسلامي تصوف او عرفان سربېره په تاريخ، ادب، موسيقۍ، معمارۍ، نقاشۍ، خطاطۍ او داسي نورو فرهنګي برخو کې په زړه پوري پرمختګونه راغلل. لکه څنګه چې يادونه وسوه د پوهي، ادب، هونر او اسلامي عرفان په مختلفو برخو کې دا پرمختګونه يوازي د هندوستان د ګورګاني دولت په جغرافيايي حدودو کې محدود نه وه، بلکي د دکن په بهمني سلطنت او د هغه تر وېشل کېدو وروسته په را منځ ته سوو پينځو خپلواکو پاچهيو، د برهانپور د فاروقي سلاطينو په دربار او نورو کوچنيو سلطنتو او نوابيو کې هم همېشه د پوهي، ادب، هونر او نورو فرهنګي ارزښتو

و ودي او پرمختگ ته ډېر پام کېدئ. په دکن کي د بېلابېلو نژادي، ديني، مذهبي، ژبنيو او فکري ډلو سوله ييز ګډ ژوند د داسي ګڼ توکمه يا کثيرالملتي دود او دستور له جوړېدو او تکامل سره مرسته وکړه، چي په تاريخ کي د «دکني تهذيب» په نامه يادېږي. د اګرې، ديلي او دکن په علمي، ادبي او فرهنګي مرکزو کي د نورو علمي او ادبي مخکښانو تر څنګ پښتنو شاعرانو، ليکوالو، مورخانو او پوهانو هم ارزښتناکه ونډه لرله. په هندوستان کي د پښتون اولس او پښتنو پاچهانو سياسي، اجتماعي او فرهنګي حالات زياتره د دغو پښتنو ليکوالو او څېړونکو په اثارو کي بيان سوي دي. البته د لودي پاچهانو په ګډون په دې ټولو دورو کي د واکمنو دربارو او علمي - فرهنګي ټولنو مروجه ژبه پاړسي يا عربي وه؛ څکه نو پښتنو ليکوالو هم د خپلو اثارو ډېره برخه په دغو ژبو ليکله.

لکه څنګه چي «حالنامه» ښيي، زموږ عارف شاعر، علي محمد مخلص، هم له الله داد (رشيد خان) او څينو روښاني ملګرو سره د دکن په بېلابېلو سيمو کي اوږده وختونه تېر کړي دي. بې له شکه د دکن د دې مهال علمي، ادبي او فرهنګي بهيرو د علي محمد مخلص او نورو روښاني سياسيونو، شاعرانو او ليکوالو پر ادبي، عرفاني او فرهنګي هڅو ژوره اغېزه ښندله. مخلص په «حالنامه» کي د رشيد خان د هغو نادرو او نايابو کتابو يادونه کيي، چي تر مړيني وروسته يې د اورنګزېب د کشر ورور، شازاده مرادبخش، په لاس کښېوتل. مخلص، د روښاني غورځنګ د معرکو او حماسو د ساتني او ستايني په خاطر د رشيد خان له خوا د هغې شاهنامې ليکلو ذکر هم کيي، چي په هغه زمانه کې، اووه زره پينځه سوه (۷۵۰۰) روپۍ پر خرڅي کړي وې[۵۶]. «حالنامه» هم دا وايي، چي د رشيد خان ورور، هاديداد خان، په حقيقت پوهنه کي بېساری شخص ؤ. «مثنوي معنوي» يې ښه لوستله؛ او مانا يې په څو ډوله بيانوله؛ د حقايقو په اړه يې ډېر کتابونه او کتابګوټي سره غونډ کړي وه... مخلص، وروسته دا هم کاږي، چي هاديداد خان د موسيقۍ په عِلم کي هم بشپړ لاس لاره؛ او په هندي ژبه يې شعر هم وايه - داسي شعر چي هر پوه او باصلاحيته اروېدونکي به آفرين پر وايه؛ او تعجب بې کاوه چي پښتنو په منځ کي لوی سوئ سړی څنګه په داسي استادۍ ماناوي او الفاظ اوډلای سي[۵۷]... د ميرزا خان انصاري ژوري عرفاني - فلسفي شاعرۍ ته خو پر نورو پښتنو شاعرانو سربېره د خوشال خان خټک او اشرف خان هجري په کلام کي هم په خورا درنه سترګه کتل سوي دي. خوشال خان خټک وايي:

په خبره يو مرزا دئ
په هر حال کي څه اشنا دئ
ګڼه نور پښتانه خوار دي
چه په لافو د اشعار دي

اشرف خان هجري خو يې په پښتو شاعري کي له تاج او افسر سره تشبيه کيي:

د مرزا شعر شمله بلکه افسر دئ

علي محمد مخلص په دغه راز علمي او فرهنګي چاپېر کي شپې او ورځي تېرولې. هري خوا تې د علم، ادب او عرفان ډېوې بلي وې. د علم پروری او ازادخیالی دې مساعدي فضا له هغه ځخه په پای کي د قرآن او احادیثو پیاوړی عالم، متفکر عارف او د پښتو او پارسي ژبو لوړ مقامه شاعر جوړ کئ.

په هندوستان کي د فکري او فرهنګي سمسورتیا دغه راز ځلانده بهیر نه یوازي په رشید آباد، فرخ آباد، علیګړ او داسي نورو پښتون مېشتو سیمو کي د پښتنو پر فکري او فرهنګي ویښتیا به لوی اثر ښانده، بلکي په درسته پښتونخوا کې د علمي او فرهنګي هڅو له پراخولو او پیاوړي کولو سره په زړه پوري مرسته کوله.

همدا وجه ده چي د دکن علمي او ادبي تهذیب له همغه پخوا زمانو ځخه تر اوسه په خورا شان او شوکت جاري دئ. د ډېر ویاړ او خوشالی خای دئ، چي پښتنو پوهانو او عالمانو د هر بل وخت په ځېر د دکن د علمي او فرهنګي نامه د معاصري دورې په ځلولو کي هم ارزښتناکه برخه اخیستې ده. «جامعه نظامیه» چي د هندوستان د الازهر حیثیت لري، په (۱۸۷۶ع) کال کي د یوه نامتو کنداري عالم، مولانا انوارالله فاروقي، له خوا په حیدر آباد دکن کي جوړه سوه. وروسته پر نومیالیو کنداري عالمانو سربېره د نورو پښتنو سیمو فاضلو عالمانو هم د مدرسې په علمي او تدریسي چارو کي لو برخه واخیسته. دا علمي ټولنه چي اوس د ماسټری په سویه شاګردان روزي، په حقیقت کي د پښتنو، په تېره بیا کنداري عالمانو د علمي کوښښو او محنتو نتیجه ده.

د کندهار جید قاري، مفسر، محدث، فقیه، عالم، ادیب او شاعر - په مولوي ابولوفاء افغاني مشهور، محمود شاه بن مبارک شاه قادري (۱۳۱۰ق/ ۱۸۹۳ع - ۱۳۹۵ق/ ۱۹۷۵ع) هم ځه موده د دې علمي مرکز د مشرتوب چاري پرمخ بېولې. د افغانستان او هندوستان په علمي ټولنو کي دې پېژندل سوي او منلي عالم په ۱۳۴۸ق کال په همدې حیدر آباد دکن کي د «احیای معارف نعمانیه» په نامه یوه علمي - تحقیقي ټولنه جوړ کړه، چي د حنفي فقهي د لرغونو اثارو و برابرولو، سمولو او خپرولو ته وقف سوې وه[58].

په دکن کي مېشتو پښتنو عالمانو، مفسرانو، محدثانو او لیکوالو له خپلو پلرنیو مېنو ځخه زرونه میله لیري د بشري او اسلامي ثقافت د ودي او ترقی په هیله بې شماره اثار ولیکل او خپل تاریخي ټاټوبي، ګران افغانستان، تې نه هېرېدونکي ویاړونه وګټل. دا چي زموږ علمي او فرهنګي مخکښانو ولي له خپل پلرني هیواد ځخه لیري په تورکیه، هندوستان یا نورو پردو خاورو کي د پوهي او عرفان ډېوې روښانولې، جواب ېې ښکاري روښانه دئ. د استعمارګرو دولتو ظالمانه تاړاکونه، د خپلو واکمنانو استبدادي رژیمونه او فرهنګي ضد سیاستونه ټول هغه ځه وه، چي د دې تاریخي مبني د پوهي، ادب او تفکر نومیالي

يې د خپل خواره وطن و پرېښوولو ته اړ ايستل. زما په نظر:

څوک په رضا له ملکه نه ځي
يا ډېر غريب سي يا يې مخ ته خطرونه

په ډېري خواشينۍ سره دا دردناک او غملړلی حالت تر اوسه هم جاري دئ. څلور دېرش کاله کېږي، چي د افغانانو په تاريخي خاوره کي د پردو او خپلو له ظلمه د وينو والې بهېږي؛ پر ټول ملک يې د ناپوهۍ، کرکي او دښمنۍ تور پلو غوړېدلئ دئ؛ ميليونونه بچيان يې د سر ساتني، ډوډۍ موندني يا نورو دلايلو له مخي د نړۍ و بېلو بېلو هيوادو ته تښتي؛ او د هري ورځي په تېرېدو سره له خپلي ژبي، کلتور او نورو ملي وياړونو پردي کيږي. په دې دردناک حالت کي ځيني ځيني و داسي مقام او منزلت هم رسېدلي او رسيږي، چي ټول بشريت يې په کارنامو فخر کيي!

**ماخذونه او يادښتونه:**

[۱] پوهاند عبدالحی حبیبی، تاریخ مختصر افغانستان، ۲ج (کابل: انجمن تاریخ و ادب، اکادیمی افغانستان، ۱۳۴۹) ج ۱: ۵۳ – ۵۴.

[۲] سبزوار د شينډنډ پخوانی نوم دئ، چي د اوسني تشکيل له مخي د هرات ولايت يوه اولسوالي ده.

[۳] Dr S. Roy, The Mughul Empire: The History and Culture of the Indian People ۱۳۴.

[۴] Dr Roy ۱۳۵. [۵] Dr Roy ۱۳۵, ۱۴۰.

[۶] میر غلام محمد غبار، افغانستان در مسیر تاریخ (ایران: مرکز نشر انقلاب با همکاری جمهوری، ۱۳۶۸) ۱۶۷.

[۷] Dr Roy ۱۳۵.

[۸] Dr Muhammad Abdul Haq Ansari, Sufism and Shari'ah: A Study of Shaykh Ahmad Sirhindi's effort to reform Sufism (Leicester: Islamic Foundation, ۱۹۸۶) ۲۱.

[۹] Dr Ansari ۲۲.

[۱۰] Prof Abdul Rashid, The Mughul Empire: The History and Culture of the Indian People ۱۹۴.

[۱۱] Prof Abdul Rashid ۲۱۳.

[۱۲] Sri A.L. Srivastva, Source, The Mughul Empire: The History and Culture of the Indian People, ۷th Vol. ۲nd ed. General Editor: Dr R.C. Majumdar. Assistant Editors: Dr. J.N. Chaudhuri and S. Chaudhuri (Bombay: Bharatiya Vidya Bhavan, ۱۹۷۴) ۱۴.

[۱۳] Prof A.K. Das, The Mughul Empire: The History and Culture of the Indian People ۹۸.

[۱۴] Prof Das ۱۱۹.

[15] غبار ۳۰۳.

[۱۶] دکتر صفا، تاریخ ادبیات در ایران، ۵ج، چاپ بیستم (تهران: قققنوس، ۱۳۸۱) ۱۰۵۹.

[۱۷] پوهاند عبدالحی حبیبي، د افغانستان تاریخي پېښليک، لومړی ټوک (کابل: د

بیهقي کتاب خپرولو مؤسسه، ۱۳۵۳) ۱۲، ۱۳۱.

[18] دوست محمد خان کامل مومند، د افضل خان بن اشرف خان بن خوشحال خان خټک د تاریخ مرصع مقدمه، مقابله، تصحیح او نوټونه (پېښور: یونیورسټي بؤک ایجنسي، ۱۹۷۴) ی ه.

[19] حبیبي، د افغانستان تاریخي پېښلیک ۱۲۲: حبیبی، « حکیم یوسف هروی: طبیب و منشی دربار بابر و همایون، » آریانا ۳(۱۳۲۸): ۱ - ۳.

[20] حبیبي، د افغانستان تاریخي پېښلیک ۱۲۸.

[21] http://www.iranicaonline.org/articles/deccan: POLITICAL AND LITERARY HISTORY

[22] کامل مومند ی ه.

[23] حبیبي، د افغانستان تاریخي پېښلیک ۱۳۴.

[24] کامل مومند ی.

[25] http://www.iranicaonline.org/articles/deccan: POLITICAL AND LITERARY HISTORY

[26] http://www.iranicaonline.org/articles/deccan: POLITICAL AND LITERARY HISTORY

[27] Srivastva, Source, The Mughul Empire: The History and Culture of the Indian People ۱۴.

[28] http://www.iranicaonline.org/articles/deccan: POLITICAL AND LITERARY HISTORY

[29] حبیبي، د افغانستان تاریخي پېښلیک ۱۴۵.

[30] کامل مومند ی و.

[31] Srivastva, Source, The Mughul Empire: The History and Culture of the Indian People ۱۴.

[32] Srivastva, Source, The Mughul Empire: The History and Culture of the Indian People ۱۵.

[33] حبیبی، « میر محمد معصوم نامی،» آریانا ۶(۱۳۲۵): ۳۷ - ۳۹.

[34] Dr Ishaque, Arabic, The Delhi Sultanate: The History and Culture of the Indian People, ٦th Vol., Prepared under the direction of Dr K.M. Munshi. General Editor: Dr R.C. Majumdar. Assistant Editors: Dr A.D. Pusalker and Dr A.K. Majumdar(Bombay: Bharatiya Vidya Bhavan,۱۹۷۴) ۵۳۰-۳۱.

[35] Dr Ishaque, Persian, The Delhi Sultanate: The History and Culture of the Indian People ۵۳۳-۴۱.

[36] Dr Ishaque, Persian, The Delhi Sultanate: The History and Culture of the Indian People ۵۳۸.

[37] Dr Ishaque, Persian, The Delhi Sultanate: The History and Culture of the Indian People ۵۳۹.

[38] Dr Chaudhuri, Aurangzib, The Mughul Empire: The History and Culture of the Indian People ۲۳۳.

[۳۹] حبيبی، «خصايص و ارزشهای شعر فارسی غالب دهلوی» آفريده های مهجور علامه حبيبی با مقدمهٔ محمد هارون خپل شعشعی ( کابل: اکاديمی علوم افغانستان، ۱۳۶۷) ۲۰۵.

[۴۰] دکتر صفا ۱۳۴۱.

[۴۱] Dr Chaudhuri, Aurangzib, The Mughul Empire: The History and Culture of the Indian People ۲۳۴.

[۴۲] Prof K. S. Lal, The Mughal Harem, 1st ed (New Delhi: Aditya Prakashan, ۱۹۸۸)۱۶۸, ۱۷۴.

[۴۳] Dr Chaudhuri, Aurangzib, The Mughul Empire: The History and Culture of the Indian People ۲۳۵.

[۴۴] Dr Chaudhuri, Aurangzib, The Mughul Empire: The History and Culture of the Indian People ۲۳۷.

[۴۵] کامل مومند ی د.

[۴۶] Sri Srivastva, Source, The Mughul Empire: The History and Culture of the Indian People ۱۰ - ۱۱.

[۴۷] مراتهي/ مراتي د اوسني هندوستان د مهاراشترا ايالت رسمي ژبه ده، چي په ځينو نورو نيژدي ايالتو کي هم ويونکي لري. دا ژبه په هندوستان کي د اصلي ويونکو د شمار له مخي څلرمه لو ژبه ده. تر (۲۰۰۱ع) پوري يې ويونکي درو اويا (۷۳) ميليونو ته رسيدل. نور مالومات په دې ويبپانه کي وګورئ:

http://en.wikipedia.org/wiki/Marathi_language

[۴۸] کانړا د اوسني هندوستان د کرناټکه ايالت رسمي ژبه ده. په شاوخوا نورو ايالتو کي هم ويله کيږي. تر ( ۲۰۰۷ع ) پوري يې د اصلي ويونکو شمېر اته دېرشو(۳۸) ميليونو ته رسيدئ. د نور تفصيل دپاره وګورئ:

http://en.wikipedia.org/wiki/Kannada_language

[۴۹] تېلوګو د اوسني هندوستان د اندرياپردېش ايالت رسمي ژبه ده. په ځينو نورو ايالتو کي هم څه ويونکي لري. تر (۲۰۰۷ع) کال پوري شپږ اويا (۷۶) ميليونو اصلي ويونکو په دې ژبه خبري کولې. په ټول هندوستان کي د خلګو د شمار په حساب دريمه لو ژبه ده. د زياتو مالوماتو دپاره وګورئ:

https://en.wikipedia.org/wiki/Telugu_language

[۵۰]

http://en.wikipedia.org/wiki/Deccan_sultanates

[۵۱] http://en.wikipedia.org/wiki/Deccan_sultanates

[۵۲]

http://en.wikipedia.org/wiki/Deccan_sultanates

[۵۳] Marika Sardar, Institute of Fine Arts, New York University: Islamic Art of the Deccan:

http://www.metmuseum.org/toah/hd/decc/hd_decc.htm

[55] Marika Sardar, Institute of Fine Arts, New York University: Islamic Art of the Deccan:
http://www.metmuseum.org/toah/hd/decc/hd_decc.htm
-
http://www.iranicaonline.org/articles/deccan: POLITICAL AND LITERARY HISTORY

[56] مخلص، حالنامهٔ بایزید روښان، نقل سرمحقق دوست شینواری و معاون محقق نورالله اولسپال (کابل: پښتو ټولنه مرکز زبانها و ادبیات اکادیمی علوم افغانستان، ۱۳۶۴) ۶۸۰ – ۸۱ (...گستتنری).

[57] مخلص، حالنامهٔ بایزید روښان ۷۰۷.

[58] حبیبی، «وفات حضرت استاد ... ابولوفای افغانی» ادب ۱ (۱۳۵۵) ... – ۷۶.

یادونه: په دې مقاله کې د ... پاترو اشخاصو، اثارو او اماکنو نوموړه له ... ېزي متنو څخه اخیستل ... وي دې څخه ... په یو و نیم کې د ځینو ... ټو ... امکانه لیري نه دي. له ... څېړونکو څخه په درناوي هیله کېږي چې ... ته په انتقادي نظر وګوري او ... تېروتنو په سمولو سره د ګران هیواد په علمي او فرهنګي بهیر کې ارزښتناکه ... واخلي.

* * *

د حاجي محمد رزمي ټولونه:

## کل خبري

- د کمزوري انسان له پاره ازادي نشته.
- تر هغه چا کمزوری سړی نشته چې د تصمیم نیولو توان نه لري.
- هغه څوک چې د خپل ژوند څخه شکایت نه کوي هغه د نورو ... تمسخر ور هم نه ګرزي.
- د هر کار خوند د هغه په پیل کولو کې دئ.
- ملګرتیا د هغو دوو ساعتانو په څېر ده چې یو ډول وخت ښيي.
- احساساتو انسان ته ور وښوول چې باید په عقل سره ژوند وکړي.
- هغه کسان چې لږ خبري کوي هغوی د خپل ځان په باب ډېر فکر کوي.
- هر څوک چې ستا څخه مخامخ بېرېږي په غیاب کې کرکه در څخه کوي.
- د په قهر کېدو معنا دا ده چې څوک د بل چا د ګناه کسات د خپل ځان څخه اخلي.
- واده هغه رومانس دئ چې د هغه قهرمان په لومړي فصل کې مري.
- هغه کسان چې په کوچنیو شیانو متاثره کېږي هغوی ستر ګوزارونه زغملای سي.
- هغه څوک چې په ژبه وهل کوي د سر بیه ورکوي.

# د سقراط تلپاته نظریات

لیکوال: زنه فین



مترجم: واحد فقیري

د مترجم سریزه:

«د سقراط تلپاته نظریات» د زنه فین (۴۳۰-۳۵۴ قبل میلاد) په روان او غښتلي قلم لیکل سوي دي. زنه فین لکه افلاطون د سقراط له مشهورو او وتلو شاګرانو څخه وو. هغه نه یوازي دا چې د سقراط په ګرداوو کې تربیه سوی وو، بلکې یو عالي عسکر او قابل جنرال هم وو. هغه د یونان په بوې ارستوکراتي کورنۍ کي زېږېدلی وو، او د ژوندانه په جریان کي ئې د خپلو ملکو او کروندو د تنظیمولو تر څنګ د یوه اجیر جنرال په توګه په ډېرو جنګونو کي برخه اخیستې وه. د سقراط له محکمې څخه څو کاله مخکي، زنه فین له اتن څخه تبعید سو او سمدستي ئې د پارس شهزاده سیروس سره د سلطنت د نیولو په غرض ملا وتړله. که څه هم د جنګ په میدان کي د زنه فین په مشري یونانی کنډک کامیاب وو، خو خپله شهزاده د جنګ په جریان کي ووژل سو. هغه یو وخت په

سپارتا کي بل وخت د یونان په نورو ښارې- جمهوریتونو کي د اجیر جنرال په حیث فعالیتونه کړي دي. زنه فین د پارس د ماموریت په باب کتاب لیکلی دئ. هغه په ۳۵۴ قبل المیلاد کي کله چي بیرته اتن ته ستون سو، مړ سو.

غربي پوهان اوس هم په دې بحث کي دي چي ایا زنه فین او که افلاطون د خپل استاد واقعي تاریخي څېره وړاندي کوي. د زنه فین د لیکلو طرز روان مگر پېچلی دئ. هغه پخپلو لیکنو کي مدام هڅه کوي چي سقراط یو مذهبي کس معرفي کړي. په تېره بیا په دې کتاب کي د هغه لوی هدف دا دئ چي پر سقراط باندي وارد سوي الزامونه رد کړي. څرنگه چي کتاب زیات فصلونه لري، نو بنا د کتاب هر فصل به په منظمه توگه د کندهار مجلې په پر له پسې گڼو کي چاپېږي. البته باید ووایم چي د کندهار مجلې له دې همکارۍ او پېرزویني څخه نهایت منندوی یم. د دې کتاب د ترجمې اصلي هدف دا دئ چي د لرغوني یونان د افکارو د مینه والو له پاره د مطالعې یو نوی ژباړل سوی اثر برابر کړم.

واحد فقیري –واشنگټن

## لومړی کتاب
## لومړی فصل

سقراط ته د خپل هېواد خدایانو ته په سپکه سترگه کتل،

او نه ئې هم د نویو خدایانو معرفي کول غوښتل

زه اکثراً دې خبرې هک پک کړی یم چي د سقراط مدعیانو د اتن د خلکو په قانع کولو کي له کوم استدلال څخه استفاده وکړه چي گواکي سقراط خپل دولت ته شا کړېده. که څه هم هغه په داسي تورونو متهم وو چي په رشتیا هم ستر او جدي جنایات ول، او هغه دا چي: «ده د خپل جمهوریت او وطن خدایان نه منل؛ او یا دا چي هغه نوي خدایان معرفي کول». او بر علاوه دا چي: «هغه ځوانان بې لاري کول»، خو له دې الزامونو څخه یو هم د سقراط پرخلاف ثابتېدلای نه سوای.

څکه، د لومړي تور په اړه «چي ده د هغو خدایانو عبادت نه کاوه چي جمهوریت او وطن ته گران او منلي ول»، دا څنگه کېدای سوای چي دا تور دي پر هغه باندي ولگول سي چي گواکي هغه د خپل وطن خدایانو ته احترام نه کاوه؟ حال دا چي سقراط مدام لېدل کېدی چي د خپلي کورنۍ او جمهوریت په معبدونو کي خدایانو ته د قربانیو د وړاندي کولو په مراسمو کي ئې برخه اخیستله او مرسته ئې کوله. بل دا چي هغه مدام د خدایانو په ستایلو او عبادت کي څه په عامه توگه، څه په فردي توگه، او څه په نورو مذهبي شعایرو کي په ژور

تفکر ډوب لیدل کېدی.

څه چي زما په نظر د هغه مدعیانو ته، البته په ظاهره درسته خو په باطن کي غلطه، یوه کاسیره پلمه په لاس ورکړې وه هغه دا چي هغوی سقراط د نویو خدایانو په معرفي کولو باندي تورن کړی وو. هغوی الزام لګاوه چي سقراط تل په عام محضر کي بیابیا اعلان کړی وو چي له یوه «الهي اواز» څخه سلامشورې تر لاسه کوي. هغه دغه غیبي اواز خپل «تور دېب» باله. مګر دغه خبره د قضیې ټول اړخونه نه ول. ټولي هغه خبري چي سقراط د خپل تور دېب په باب کولې، تر هغه زیاتي نه وې چي هره ورځ ئې هغه خلک چي د غیب ویلو په چارو بوخت دي، وایي. نو که چیري سقراط، چي ادعا ئې کوله چي له خپل نبوغ او ابتکار څخه علم او حکمت تر لاسه کوي، د نویو خدایانو په معرفي کولو تورنېږي، نو باید هغه نور چي د غیب ویلو ادعا کوي هغوی هم په همدې الزام تورن سي. څکه ایا هغه خلک چي د غیب په ویلو باندي باور لري، او همدا عقیده عملي کوي، هغوی هم د مرغانو الوتل څاري، د قرباني سویو څارویو کولمې او لړمون مطالعه کوي، او حتی غیر مترقبه او تصادفي پېښي اظهاروي؟ په هر صورت، هغوی په دې باور نه لري چي کوم مرغان چي دوی ئې الوتل څاري او یا هغه خلک چي دوی ورسره تصادفاً مخامخ کېږي، د هغوی په ښه او یا بد بخت او طالع باندي واقف دي. – سقراط هم په دې نه پوهېده – البته هغوی یوازي په دې باور دي چي خدایان له همدې علایمو او نښانو څخه د راتلونکو پېښو په اټکل کي کار اخلي. همدا د سقراط عقیده هم وه. خو شډل او بې ذوقه خلک تصور کوي چي دا هغه مرغان او شیان دي چي هغوی ښه او نیکو کارونو ته تشویقوي، او یا ئې دې ته هڅوي چي څانونه د هغو شیانو څخه وژغوري چي ښایي د هغوی له پاره زیان ولري. مګر سقراط ازادانه او برملا منل چي یو دېب د ده مربي دئ؛ او هغه مدام خپلو ملګرو ته مخکي له مخکي، البته د خپل دېب د هدایاتو په اساس چي ده ته ور رسېدلي ول، ویل چي هغوی باید څه وکړي، او یا څه باید و نه کړي؛ او هغو ملګرو چي په ده باور لاره، او د ده له سلا مشورو سره ئې سم عمل کاوه، هغوی تل په دې کار کي ګټه کوله؛ او په مقابل کي، هغو خلکو چي د ده په سلامشورو کي ئې غفلت کاوه، تل ئې د خپل شکمنتوب په اړه پښېماني او توبه اظهاروله. اوس نو، له دې خبري انکار نه سي کېدلای چي سقراط باید ډېر احتیاط کړی وای چي نه ئې ملګرو درواغجن انګېرل وای او نه ئې یو خیالي سړی تصور کړی وای. مګر

ځرنګه به ده له دې انتقاد ځخه ځان ژغورلی وای، په تېره بیا که چیري شرایطو او حالاتو هغه حقایق نه وای توجیه او تایید کړي چي ده ئې د الهام اخیستلو او درک کولو ادعا کوله؟ نو بنا، ښکاره خبره ده چي ده به د هغو شیانو اټکل نه وای کړی چي پر حقیقت یې باور نه لاره. اوس نو، ځرنګه به ده پر خپل حقانیت باندي باور لرلای مګر دا چي سقراط ته خدایانو، چي یوازي هغوی د راتلونکو حادثو د پېښېدو مخکني علم لري، خبرداری او اطلاع ورکړې نه وای؟ بلخوا، که چیري ده باور لاره چي هغوی همدا کار کړی دئ، نو بیا ځرنګه دا تور اظهارېدلای سي چي هغه پر خدایانو ایمان نه لاره او یا ئې د هغوی پر شتون اعتراف نه کاوه؟

دغه راز، هغه خپلو ملګرو ته توصیه کوله چي هغه کارونه په ښه وجه وکړي چي کول ئې د دوی له پاره ضروري ول، البته د امکان تر حده پوري چي د دوی په توان کي ول؛ مګر د هغو خلکو چي کارونه ئې په شک کي ول، سقراط هغوی د الهام منبع ته استول، ځو په دې پوه سي چي ایا په هغو کارونو کي برخه واخلي او کنه. هغه عقیده درلوده چي هغه اشخاص چي د خپلو کورنیو او یا ښارونو د ښه او کامیابه حکومت او اداره کولو خیال ئې درلود، هغوی د اټکل، حکمت، او الهام مرستي ته ډېره زیاته اړتیا لرله. سقراط کلک باور لاره چي، هر بنیادم کولای سي چي د خپل ژوندانه د شرایطو په انتخاب کي ونډه ولري او یا خپل ژوند هسي وکړي چي خیال او اراده ئې لري. او یا پخپل زحمت او کار کولای سي چي د خپل ژوندانه شرایط لا ښه او عالي کاندي. که چیري یو کس انجینري او یا کرهني ته مخه کړي او خپل استعداد په دې لارو کي مصرف کړي، که چیري سیاست او اقتصاد ته مخه کړي، که چیري د مستوفیت او یا عامه عایداتو راغونډولو ته او یاپه پوځ کي کارکولو ته زړه ښه کړي، خو په دې ټولو ساحو کي خدایان پر خاصو او مهمو حوادثو باندي کنټرول لري، په کومو کي چي ښځي هوښیار خلک هم ونډه او دخالت نه لري. نو بنا، هغه ځوک چي ښه باغ جوړوي او ښې وني ایږدي، هغه نه پوهېږي چي میوه به ئې ځوک راټوله کړي؛ هغه ځوک چي کور جوړوي، خو په دې نه پوهېږي چي ځوک به پکښي و اوسېږي؛ یو جنرال په دې متیقن کېدلای نه سي چي ایا دی به پخپله قومنده کي بریالی وي او کنه، نه هم یو وزیر پخپل وزارت کي پوره یقیني کېدلای سي؛ هغه ځوک چي د یوې ښکلې ښځي سره د ښه او نېکمرغه ژوند د کولو په غرض واده کوي، هغه په دې

باندي نه پوهېږي چې همدا ښايسته به ئې د ټول عمر له پاره د غم، دوک او خپګان سبب وګرزي او کنه؛ او هغه څوک چې د نورو سره په يوه ائتلاف کې ګډون کوي په دې نه پوهېږي چې ايا بالاخره به ئې همدا ايتلافي ملګري د هغه د تباهۍ سبب نه سي او کنه. همدې خبري هغه دېته اړ ايسته چې مدام ووايي چې دا به يوه لويه اشتباه او حماقت وي چې تصور وسي چې هلته داسي يو قادر موجود نسته چې پر دغو شيانو باندي نظارت نه کوي، او يا دا چې همدا مسايل يوازي د بنيادمانو پر بصيرت باندي تړاو او يا تکيه لري. هغه دغه راز عقيده لرله چې دا يوه کمزوري ده چې له خدای څخه د هغو کارونو په حلولو کې مرسته وغوښتل سي، چې موږ ئې پخپله حلولای سو؛ د مثال په توګه، که موږ له خدايانو څخه وغواړو چې ايا دا به ښه وي چې د يوه ماهر ګاډيوان پر ځای يو داسي ګاډيوان له ځان سره يوسو چې اصلاً د ګاډۍ په چلولو باندي نه پوهېږي؟ يا ايا د يوه ماهر او قابل ماڼو پر ځای د يوه لټ او بېکاره ماڼوګي ښول درست دي او کنه؟ په بل عبارت، سقراط دا يو ډول بې ايماني ګڼله چې د اعدادو، ارقامو، او وزن په ارتباط له الهام څخه مرسته وغوښتل سي، ځکه موږ بايد هغه شيان پخپله زده کړو کوم چې خدايان په خوشحالي سره غواړي چې موږ په خبر و اوسو؛ خو موږ بايد په هغو شيانو او مسايلو کې له الهام څخه مرسته واخلو چې زموږ د علم او پوهي تر ساحې وتلي وي، ځکه خدايانو عادت کړی دئ چې هغو خلکو ته هدايت وکړي کوم چې غواړي له خپلو ځانونو سره پخپله مرسته وکړي.

سقراط ندرتاً په کور کې اوسېده. سهار به هغو ځايونو ته تله چې د عامه خلکو له پاره د چکر او کسرت له پاره ټاکل سوي ول. هغه هيڅ وخت په عمومي هال او يا د عدالت په محکمو کې غيرحاضر نه وو. هغه به تل پر معين وخت باندي هلته حاضر وو، او د ورځي په جريان کې به په هغو ځايونو کې ګرزېده چې زيات خلک به هلته ول. همدلته به ده زياتره مجلسونه او بحثونه کول، او هر چا چې به غوښتل چې د ده سره خبري وکړي دی به حاضر او چمتو وو. خو بيا هم هيچا هيڅکله د هغه په خبرو او يا اعمالو کې بې ايماني او بې تقوايي و نه لېده. نه ئې هم د طبيعت د اسرارو په ارتباط دلايلو ويلو باندي ځان مصروف او لګيا کاوه، نه ئې د خلقت د طريقې په اړه تحقيق کاوه، څه چې سوفسطايانو ورته کاينات او نړۍ ويله، او نه ئې هم د اسماني موجوداتو او ستورو د حرکاتو د علتونو په اړه جروبحث کاوه.

برخلاف، هغه هغه کوله چې د دغه راز حماقت څخه پرده پورته کړي او هغه خلک ئې توبيخول چې په دې ډول بحثونو ئې ځان لګيا ساته. هغه به سوال کاوه چې ايا هغوی د انسان په ارتباط کامل علم ترلاسه کړی دئ چې غواړي د اسمان او هسک په اړه تحقيق او خبري وکړي؟ او که چيري دوی ځان دونه پوه او عالم ګڼي چې له انساني مسايلو څخه ئې غفلت کړی دئ او غواړي د اسماني موجوداتو او شيانو په اړه تفکر وکړي. همداراز، هغه تعجب کاوه چې ولي دوی دا نه سي درک کولای چې د بنيادم له پاره په دغو عجايباتو باندي اصلاً پوهېدل ناممکن دي؛ او ولي د هغو خلکو په اړه ئې چې په دې ساحه کي ئې د علم شهرت ترلاسه کړی وو ، د هغوی تر منځ د نظر اختلافاتو ته پام نه کوي. هغوی هم د همدې احمقانو او لېونيانو په شان پر هيڅ مسلې باندي توافق نه لاره. له دوی څخه ځيني له ډېرو ډاروونکو حوادثو څخه هم بېره نه لري، مګر ځيني نور ئې بيا له داسي شيانو څخه ډارېږي چې اصلاً بايد نه وای ترې بېرېدلي. نو د همدغو فيلسوفان په منځ کي، ځيني باور لري چې هر عمل بايد په عام محضر کي وسي، او هره خبره بايد په ازاده توګه د خلکو سره مطرح سي. خو ځيني نورو بيا، برخلاف، عقيده لرله چې بايد له خلګو څخه ځان ګوښه وساتي، خبري او محاوره ورسره و نه کړي، او په دايمي عزلت او انزوا کي ژوند وکړي. ځينو له معابدو او ممبرونو څخه کرکه لرله، او اصرار ئې کاوه چې بايد خدايانو ته درناوی و نه سي، بلخوا ځيني بيا دونه خرافاتي ول چې لرګيو، ډبرو، او غير معقول شيانو ته ئې عبادت کاوه. د طبيعي شيانو او موجوداتو په اړه، ځينو يوازي پر يوه شي او منشا باندي باور لاره؛ نورو بيا پر نامحدودو شيانو باندي عقيده لرله: ځينو ټينګار کاوه چې ټول اشيا په دايمي او ابدي حرکت کي دي؛ نورو بيا ټينګار کاوه چې هيڅ شی حرکت نه کوي: ځينو ويل چې جهان په دايمي او پرله پسې توګه زېږي او مري؛ نورو بيا ټنيګار کاوه چې هيڅ شی نه توليدېږي او نه هم تباه کېږي. سقراط ويل چې غواړي پوه سي چې ايا همدا خلک خپله داسي هيله په زړه کي لري چې يوه ورځ خپلو زده کړو علومو او معلوماتو ته د عمل جامې ور واغوندي او کنه؛ مانا دا چې هغه خلک چې يو هنر او مهارت لري ښايي يوه ورځ خپل مهارت او هنر د خپل ځان او يا د خپلو ملګرو په خدمت کي وکاروي. او ايا کله هم دوی داسي تصور کړی دئ چې کله دوی د دغو ټولو شيانو غايه او سبب پيدا کړي، مانا دا چې ولي دغه شيان پېښېږي،

دوی به پر دې وتوانېږي چي باد چالانه او باران واوروي، او یا وخت او موسم د خپل خیال او فکر سره سم راولي؛ او که ایا دوی یوازي په تش علم او پوهي زړه خوشحاله کړی دئ پرته له دې چي لدې زده کړو څخه عملي استفاده وکړي.

همدا خبري سقراط د هغو خلګو په باب کولې چي په دغه راز مطالعو او څېړنو ئې ځان لګیا او خوشحاله ساتلی وو. مګر پخپله سقراط یوازي پر هغو شیانو باندي تفکر او غور کاوه چي د نورو بنیادمانو له پاره ګټور او مناسب ول، د تقوا او بې تقوايي په باب ئې خوندور بحث او استدلال کاوه، د عزت او بې عزتی په اړه ئې خبري کولې، د عدالت او بې عدالتی په باره کي ئې غور او تحقیق کاوه، د عقل او حماقت په اړه، د همت او سپیتاني په ارتباط، د دولت او حکومت په باب، او د دولت د وزیرانو د وړتیا او کفایت په ارتباط ئې چورت واهه. د حکومت په اړه، او د هغو په باب ئې سوچ کاوه چي د حکومت کولو جوګه دي؛ لنډه دا چي هغه دغه راز مسایل او مطالب لا پراخول او لا ئې څېړل، ځکه همدا مسایل د ټولو ازادو خلګو له پاره ضروري ول، او یوازي مریانو کولای سوای چي په دې باب غفلت وکي.

دا عجبه نه ده چي د سقراط د قضیې قاضیان د هغه له نظریاتو او افکارو څخه په هغو مواردو کي غلط درک ته رسېدلي وي چي سقراط تشریح او توضیح کړي نه ول؛ مګر زه دې ته حیران یم چي څرنګه هغوی د هغه پر خبرو او اعمالو باندي چي ګرده نړی ئې شاهده وه، غور او تفکر و نه کړ. ځکه کله چي هغه د سنا غړی وو، او د قوانینو د دقیق او پوره څارلو او تصویب لوړه ئې کړې وه، او په عوض کي د یوه سناتور او مخور سیاسي شخص مقام او وقار ورکړه سوی وو، هغه په مېړانه د عوام الناس د هغو تقاضاوو په وړاندي مقاومت وکړ چي د معقولیت د ټولو موازینو پرخلاف ئې غوښتل چي هغه نهه کپتانان، چې یو ئې ارازینیدایس او بل یې تراسیلوس ول، باید اعدام سي. سقراط هیڅکله له دې بې عدالتی سره موافقه و نه کړه، او نه هم د پرګنو له قهر او لېونتوب څخه ډار بده، او نه ئې هم د واکمنانانو له تهدیدونو څخه باک لاره. هغه نه غوښتل چي له خپلي لوړي څخه د سرغړوني په قیمت د پرګنو د خښم او تشدد له وهمه، او یا د هغو خلکو له تهدیدونو څخه ځان په امن کړي چي دی ئې تهدیداوه. هغه په دې اړه ویل چي خدایان پر بنیادمانو باندي داسي په دقت څارنه کوي چي د عوام الناس ډانګیان ئې تصور هم نه سي کولای؛ ځکه هغوی باور لاره چي هلته داسي شیان سته چي خدایان ئې څاري،

خو ځيني داسي شيان هم سته چي هغوی ئې نظارت نه کوي. مګر سقراط باور لاره چي خدایان زموږ ټول اعمال او خبري ځاري، او حتی زموږ په سر کي مخفي خيالونه هم تعقيبوي، هغوی زموږ د ټولو قضاوتونو او فيصلو پر وخت حاضروي، او بالاخره هغوی زموږ په ګردو کارونو کي زموږ له پاره الهام بخښونکي منبع وي.

نو بنا، دا د تعجب ځای دئ چي ځرنګه د اتن خلګو وکړای سوای چي ځانونه په دې قانع کړي چي سقراط د لوی خدای په ارتباط بې ارزښته او بابېزه خيالات په سر کي روزل؛ هغه هيڅکله د خدايانو پر خلاف يوه سپکه کلمه هم نه وه کړې، نه ئې هم هيڅکله داسي عمل تر سره کړی وو چي لږ ترلږه د بې تقوايي بوی ترې ولاړ سي. مګر برخلاف هغه مدام داسي خبري او اعمال کول چي پرته له متقي سړي څخه ئې تمه کول، يو عبث کار دئ، داسي اعمال او خبري چي د يوه بنيادم له پاره د ابدي تقوا او فضيلت د شهرت ګټلو له پاره ئې کفايت کاوه.

نور بيا ...



عبدالباري جهان /امریکا

# د راز محمد راز په ویر کي

**ماتم دی په دې ښار کي جنازې دي چي راځي**
**خالقه ورځي څه سوې توري شپې دي چي راځي**

د جون پر څلیرویشتمه سهار وختي، د پښتنو د یوه لوی لیکوال، شاعر او مفکر رازمحمد راز له مړیني څخه خبر سوم. ځان ځکه ملامت راته ښکاري چي د خپل پښتون چاپیریال څخه د لیري والي له امله د هغه د اوږدو رنځونو څخه خبر نه وم. کشکي ما ته د هغه پر ناروغي باندي د یو ځل پوښتني کولو فرصت برابر سوی وای. هغه، د راز په خپله ژبه، د پښتنو په ماحول کي، د ګوتو په شمېر کسانو څخه وو چي سړی ئې په تورو تیارو کي یو څراغ بللای سي.

**څه وګړي ضرورت د تورو شپو وي**
**څه وګړي په صورت د څراغو وي**
**د وجود قامت يې زيات تر وختو ښکاري**
**څه وګړي په لږ شپو کي د عمرو وي**
**سپيرې مځکي، سپيره زړونه، په روښان وي**
**څه وګړي خدای جوړ کړي له لمرو وي**

پروفیسر راز محمد راز یو فلسفي شاعر وو. هغه ټول عمر کوښښ وکړ چي د خپلو سوالونو له پاره جواب پیدا کړي. هغه غوښتل د کایناتو او ژوند په مفهوم پوه سي. هغه بخیل نه وو، او که ئې چیري مناسب جواب تر لاسه کړی وای نو حتماً به ئې له خپلو ټولو پښتنو لوستونکو سره شریک کړی وای. خو لکه څرنګه چي پخپله په هر ګام کي له سوال سره مخامخ وو، او د جواب د پیدا کیدلو ارمان ئې ګور ته یووړ، دغسي ئې لوستونکو ته هم، د ډېرو نورو مفکرینو په څېر، د جوابونو پر ځای سوالونه پیدا کړل، او دا پخپله یو کمال دئ.

**د فراق په اور سوځلی زړه مي ژاړي**
**بیا د ځان څه پټه خوله پوښتنه کاندي**
**دا تضاد د فطرتو د چا تقسیم دئ؟**
**زما د ماتو حوصلو تجدید به څوک که؟**
**له ښو به مي څوک اوښکي په لب واخلي؟**
**ستړي مځکي د الفت به څوک سمسوري کړي؟**
**ستړي ستړي دا سوالونه**
**اغزن ناست زما په زړه کښي**
**ستا څواب ته انتظار که**
**اې د عشق د دنیا خدایه**

او کله چي د خپلو سوالونو له پاره جواب نه پیدا کوي نو نور بنده ګان هم د ځان په څېر بې جوابه ورته ښکاري او ځکه نو پخپله د خدای څخه مستقیماً پوښتنه کوي. او په یوه حالت کي خو لا د منصور په څېر هغه مقام ته رسېږي چي ځان او جانان یو ورته ښکاري. البته د راز له اشعارو او افکارو څخه دا نه څرګندېږي چي خپلو په زړهاوو

سوالونو ته ئې جواب پیدا کړی دی کنه.

**ښایسته خدایه!**

**ته او زه، لمر، او سمندر**

**فقط د مراتبو په حواله سره**

**تقسیم ښکارو**

**ګڼه څومري سره یو یو!**

راز محمد راز ښایسته غزل لیکله. په غزل کې ئې ښایسته کلمات او ترکیبات درلودل او تقریباً د هیچا پیروي ئې نه ده کړې. دا د هغه خپله غزل، خپل ښایست او خپل خاص انداز وو. په غزل کې ئې تر مستیو د ناهیلیو خوا درنه وه. داسې ښکاري لکه د خپلو اوړدو رنځونو څخه ډېر مخکې چې په خپل سرنوشت خبر وو. ډېر پخوا ئې، زړه نازړه، د سفر له پاره تیاری کړی وو. خپل زخمونه ئې لیدل او د خیال په ښایسته دنیا کې ئې د ښیښو څخه تراشلې نجلۍ یوازې د کاڼو په ژبه خبرې ورته کولې. هغه به په داسې حال کې د خپل ژوند د لړزانې مانۍ د نړېدلو څخه پرته بل څه لیدلي وای.



**اې وحشته صبر وکه مځکه سره ده**

**لځو پښو ته جوړوم څپلۍ مزري**

**ټول وجود مې لکه درخته زخم زخم**

**د ښیښو نجلۍ کوي کاڼي خبرې**

**د فراق خزان مې ولویدی و زړه ته**

**ښې مې ایسې خرابې او مات کودرې**

**راسه ګراني زموږ تمثیل دی په کتاب کې**

**په تصویر کې ښکاري زاني مات وزرې**

پروفیسر رازمحمد راز مې په ۲۰۰۲ کال کې د کوټې د ښار په پښتو اکاډیمي کې د ګڼو لیکوالانو او شاعرانو په مجلس کې ولید. هلته هم د هغه نیژدې ملګرو د هغه د افکارو په باره کې د هغه په مخ کې تبصرې کولې. هغوی ته ئې سوالونه او جوابونه څه عجیب غوندې ښکارېدل. راز صاحب په خندانه څېره د هر یوه سوال ته جواب وایه. څو خلې ئې زما خوا ته وکتل او مطلب ئې دا وو چې زه ئې ملاتړ وکړم. زه د راز صاحب له افکارو او اشعارو سره نابلده وم. څکه مې ښایي، د هغه د انتظار په خلاف، په هغه مجلس کې یا هیڅ نه وي ویلي او یا مې

بیخي لږ څه ویلي وي. یوازي دونه ویلای سم چي خبري او اشعار ئې ښه راباندي لګېدل. د هغه د افکارو تر ټولو غښتلی مفسر پخپله دی وو او د سوالونو جواب، که یې چیري پیدا کړی وو، هم یوازي ده ته ځرګند وو. هغه د لایتناهي کایناتو په مقابل کي هر وخت له دې ستر سوال سره مخامخ وو چي د ده ذره وجود، بالاخره، د دومره ستر عظمت په مقابل کي، څه مفهوم لري او څرنګه د هغه په سیوري کي د ودي او ارتقا هیله درلودلای سي. ځکه چي هغه لمرونه چي دی ئې د خپلي ودي له پاره زرینو وړانګو ته اړتیا لري هغه له ده څخه ډیر لیري دي:

**ته محیط پر ټول عالم پر ټول زمان یې**
**ستا تر ګنې سایې لاندي**
**د واښو تر قامت نه یم بلند سوی**
**تا ځلاند لمرونه لیري ځل ساتلي**
**ما د واورو فصل وکی په داخل کي**
**زه مانده ستړی وګړی**
**د انسان او د شیطان تر منځ بیشلی**
**له ازله تا ربه**
**دا ژړاند استفسار کاندم**
**په دې ډک او سوړ جهان کي**
**ستا تر ګنې سایې لاندي**
**کوم امکان، کوم ګنجایش سته، زما د، ودې؟؟**

د پښتو د ډېرو نورو شاعرانو په څیر زه هم د غزل سره مینه لرم. چي د چا د غزل شرنګ خوند راکړي نو ټول شعرونه ئې ښه راباندي لګیږي. د راز صاحب غزل، د هغه د خپلو ټولو شعرونو په څېر، د نورو له غزلونو څخه ښکاره توپیر لري. په غزل کي ئې یوازي شرنګ نه دئ پروت، بلکي د نورو نظمونو په څېر ئې له هوښیارو سوالونو څخه مالامال ده.

**زما د زړه د کاینات پر ورځو شپه سوه**
**د ځښتن د ځیري لمر په ګرځو پټ دی**
**د راتلو سره یې دود لکه سایه سم**
**هغه څوک چي په بې شمیره لمرو پټ دی**
**سکنی سوال لري د سترګو په کعبه کښي**
**شفق زار ځواب زما په رګو پټ دی**
**د عمرو خلیج آوار لرو په منځ کي**
**زما و ستا منزل په تلخو اوبو پټ دی**
**د نقاب سحاب یې دود کی بلو ګوتو**
**اسود زړه مي اوس د نور په حلقو پټ دی**
**ستا د سترګو د ښو په رپ کښي څه وو؟**
**د زړه دښت مي د ابهام په اغزو پټ دی**
**اننګو یې دی د اور موسم راوړی**
**واورین زړه مي د لمبو په شغلو پټ دی**

زه به د پښتو ژبي د داسي غښتلي غمخور په باره کي نور څه ولیکم چي د هغه د کشري ورور عصمت زهیر په قول ئې د مرګ پر پوله د خپل چاپېدونکي اثر د چاپ د چارو پوښتنه کوله او خپل ورور ته ئې ویل چي د خپل کتاب چاپي ښه لیدل ئې وروستنی ارمان دئ. د عصمت زهیر له خبرو څخه داسي ښکاري چي دا ارمان ئې ګواکي پوره نه سو. البته دنیا له ارمان سره ده او که ئې دا ارمان پوره سوی هم وای، زه یقین لرم چي په زرګو نو نور ارمانونه به ئې پر زړه پاته وه. زه خپل ګران عصمت زهیر ته، چي نه د شعر او نه د نثر په لیکلو کي تر سیالانو پاته دي، د دې ستري ضایعې له امله د زړه له کومي تسلیت وړاندي کوم. د پروفیسر راز محمد راز ټولي درنې کورنۍ او نیژدې او لیري دوستانو ته صبر جمیل غواړم.

انا لله و انا الیه راجعون.



داکټر عبدالرزاق پالوال

# د نورستانيانو مجرد او مختصر تاريخ

A Short Abstract History of Nuristan

په يوه وګړي ټولنه کښي چي ليک او لوست نه وي، هغه ټولنه به هم بې تاريخه څه چي لا به نوم ورکې هم وي. ډېر واقعات څه چي په وارو – وارو به تاک له تاکه، ايسته دوري بې ځايه سوې هم وي، خو څوک به ئې آن دا چي په افسانو کښي لا هم يادوءنه نه کوي. د افغانستان د نورو ټولنو په څنګ کښي يوه بله دغسي هم د نورستان ټولنه ده.

په دغي لنډې ليکني کښي به کوښښ وکړه سي چي د نورستانيانو د پخواني وطن پېژندنه او يادوءنه مي کړې وي. دغه به هم د اوز نومونو او ځينو تاريخي پېښو پر بنياد وي.

کله چي په ۳۲۹ ق م کښي لوی سکندر له کاپيسا څخه و باختريا ته تر هندوکش وراووښتئ، د کاپيسا اوسېدونکو ئې لارښوونه کړې وه. بيا وروسته لوی سکندر خپل خسر، د روخښانې پلار اوخښيارت Oxyart چي يو پرثوان ؤ، د کاپيسا يا د هندوکش د سهېل ختيځ ساتراپ مقرر کړئ ؤ. د دوی پېژندګلوي د نورستان په رواياتو کښي نغښتې پاته ده.

يو مشهور نوم چي د افغانستان په پخواني تاريخ کښي ئې خاصه يادوءنه کيږي هغه "پارو په ميسه ده" Paropamisada دئ. دغه نورستاني نوم دئ. مفهوم ئې "د مي – سه mi-sa غرء په هاخوا" دئ. په نورستاني ژبه کښي و غرء ته "ده da" ويل

کیږي. مي mi یو راز عبادتي مراسم دي چې
نوماند ئې شل ورځې، له کلي - کوره څخه
وتلی، د غره پر دډه sa باندي اجراء کوي. په
pa په ژبه کښي د اضافت ادات دئ، او پارو
Paro مانا د مي mi مراسمو د غره په ها خوا.

همالیه هم همادیه Hima-daya ده
چې مانا ئې "واورین غرونه" ده. له دغه سره
په څنگ کښي بیا هندوکش د "اوبن غرء"
مانا لري.

فاهیان Fah-Hian چینایي زایر چې د
پامیر له لاري څخه د هندوکش شمال ته
تللئ ؤ، هورې د "توشیته" Tushita یادوءنه
کوي. دی وایي چې مایتریه بودهیستوا
Bodhisatua د توشیته په آسمان کښي ؤ.
دغه "توشیته" به خود "دوشیده" وي چې
مانا ئې "د دوشي غر" ده. دوشي د هندوکش
په څرمه شمال کښي لا تر اوسه پوري یو
بنار گوتئ دئ. د دغه غرء پر سه sa = دډه
باندي نمنځغالي mi-sa ول. دغه "سه sa"
په آسمان سره پېژندل سوي او ساموئل بئیل
Samoel Beal هم په آسمان heaven سره
ترجمه کړئ دئ.

دغه ژبني نومن څرکونه دلالت پر دې
باندي کوي چې هم د هندوکش په شمال،
دوشي Dushi، کښي کاتي نورستانیان
اوسېدل او هم د هندوکش په سهېل،
کاپیسا، کښي دغه نورستانیان اوسېدل.

داسي ایسي چې "کاپیسا" Ka-pi-sa
دي هم کاو Kaw - پي - سه sa ؤ، چې مانا د
کاو Kawkasus (غر) دډه Sa. نورستانیانو
د خپلو مړو تابتونه هم د غرء پر دډه باندي
ایښوول. په بامیان کښي چې د غرء په دډه
کښي سمي خوني کیندل سوي دي، هم د
مي - سه sa - mi عبادت ځایونه یا
نمنځغالي ول چې اوس د څرمه کلو بې کوره
خلگ پکښي اوسیږي. حکومت ئې د ساتني
په برخه کښي اسکېرلئ (عاجز) دئ.

"کاوپوره" مانا غرنی کلا وهلئ بنار. د
کابل نوم هم له دغه "کاپوره" څخه اخستل
سوئ دئ. د دغي ادعا د ثبوت له پاره بل
ژبنی دلیل دا دئ چې دوه نور ځایونه، یو
بگرام baGram او بل د کابل په ختیځ کښي
بگرامي baGrami هم د نورستان د کاتي
ژبي نومونه دي. په دغه ژبه کښي "به ا و په
ba او pa" د اضافت مفهوم افاده کوي.

د پخواني نورستاني دین او ورپسې
بودائي دین نمونځغالي چې په بامیان کښي
تر اوسه پوري هم سته او خورا ستر تاریخي
اهمیت لري. هم د اشوکا په بادشاهي (۲۷۲
- ۲۳۱ ق م) کښي او هم د کنېښکا په
بادشاهي (۷۸ - ۱۰۱ع) کښي او لا هم د
ټولو کوشانیانو او هندو شاهیانو په دوران
کښي بامیان د جهان ستر دیني نمنځغالئ
ؤ، خو له بده مرغه دافغانستان د حکومت او
په سري سره د اطلاعات او فرهنگ وزارت د
بې غوری له اسیته څخه اوس په دغو
نمونځغالو کښي د بامیان کورنی اوسېږي. د
وگړتوب او نیمگړتوب له اسیته څخه په
افغانانو خپل تاریخي آبدات نه پاللي او نه هم
په ساتلي دي. هم دغه ئې د وگړتوب او
نیمگړتوب ثبوت دئ. د بامیان جوړه بتان
(پلار او زوی بودا) د دوو جهاني ادیانو
هودایان ول چې زموږ د ناپوهیو او تنگ
نظریو قرباني وگرځېدل. دغو بتانو د نورو تر
پېژندني اوز گرایه دېر نړیوال اهمیت لاره.

کله چې د ۷۰ - ۲۶۵م کلونو تر منځ د
هندوکش په شمال او سهېل کښي د
کوشانیانو بادشاهي جوړه سوې وه، دوی
چې غزنی نیولئ او هم ئې د هند شمال تر

بارهوت او سانچي په ها خوا ختيځې برخې پورې نيولي وې، دغه پخواني نورستانيان، كاتيان، ورسره ول او هم په بارزه توګه سره چې څرګ او آثار ئې په وضاحت سره پېژندل كېداى سي چې ځيني ئې ما د Zimmerman په كتاب كښې، چې پر بودايت باندې كښل سوئ دئ، پېژندلي ول. له بده مرغه اوس راځخه ورک سوي دي.

دا چې ژبني شواهد داسي ښكار ندوينه كوي چې په كاپيسا، او د كابل په بګرامي كښې د ۳۰۰ ق م په شاوخوا كښې كاتي يا كتا نورستانيان اوسېدل، بيا نو څه پېښه سوې ده چې دوى نور په دغو ځايونو كښې نسته؟

د كاپيسا په پچغان Pachaghan دره كښې درې توكومه خلګ اوسېږي د درې په دننه، سرنۍ برخه كښې، پراچيان Parachyan اوسېږي چې اوز كلي لري.

دغه مهال يفاتليان يا اپتاليان د هندوكش له شمال څخه پر كاپيسا باندې وراووښتي او په كاپيسا كښې ئې د كوشانيانو بادشاهي وررنګه كړې وه. يا ښايي دغه كار به ساسانيانو كړى وُ، چې پراچيان به ئې ملګري ول. دوى د كاپيسا ځايي اوسېدونكي ئې له كاپيسا څخه و اليشنګ درې ته پسي اخيستي ول. د اجتماعي ستراتيګرافۍ له مخي څخه ويلاى سو چې دغه كار به پراچيانو كړئ وُ. دوى به يا په خپله هفتاليان ول يا به د هفتاليانو متحدين ول. پراچيان اوس هم په خپله آرياني ژبه رغېږي. اى ژبه ئې مغولي يا هندي الاصله نه ده.

په هندوشاهي كښې پشيان Pashayan پر كاپيسا او باميان باندې مسلط سوي ول. دوى پراچيان د پچغان او غوچولان په تنګو درو ننه ايستلي ول چې پاتندويان ئې لا تر اوسه پورې هم په دغو دوو درو كښې اوسېږي. پشيان د پچغان درې په منځ كښې يو كلئ لري او نور ئې په الساى او د لغمان په الينګار دره كښې او هم په كونړ دره كښې يو ځاى او بل ځاى اوسېږي. دوى د هندوشاهي پاتندويه دي.

هغه پښتانه چې سپاري يعقوب ليث له خراسان څخه وروستلي او د غزني د هندوشاهيانو يا كابل شاهيانو سره په مخامختيا كښې ئې په مركور (مقر) كښې ځايان كړي ول، عمروليث د دوى په چوټ سره كابل او كاپيسا نيولي ول، او هم ئې دوى په دغو اويجو كښې ځايان كړي ول څو بيا د مخالفانو په لاس ورغلي نه وي.

كله چې الپ تګين په شمال كښې له سامانيانو څخه مرور سوئ وُ، دى له خپله لښكره سره تر هندوكش و سهېل ته واوښت او په غزني كښې ئې و ځان ته شاهي جوړه كړه. دء غوښتل چې د خوست او كورمي له لارې څخه ئې پر هندوستان باندې بريدونه كړي وي. ولي چې د كابل – خيبر لار د هغو نورستاني كاتيانو له خوا څخه ناآرامه او غير مصئونه وه چې دوى له كاپيسا او كابل څخه و اليشنګ او لغمان ته شړل سوي ول. هغيو هم پر دغې لارې باندې د كاروانونو په چورولو سره ولجې كولې او هم ئې د كاروانيانو او نورو لارويانو په وژنو سره په خپله ټولنه كښې رتبې او امتيازات اخيستل يا لاګټل.

دغسي هم نورو پر دغې لارې باندې كاروانونه لوټول او وژني – ژوبلوني ئې كولې، ځكه نو سبوكتګين د مركور (مقر)، پښين او زابل څخه ګڼ شمېر خلګ چې دوى په خپله سپاه كښې شامل كړي ول د لغمان،

کونړ، او مله کنډ درو په خولو کښي ځايان کړل ځو د کابل – پېښور لار ئې محفوظه کړې وي. دغه سپاهيان اوس نن ورځ ځانونه صافيان بولي او يوه نوې قبيله ځني جوړ سوې ده.

وروسته محمود غزنوي له کندهار، پښين او وديرستان (اوسني وزيرستان) ځخه سپاهيان په کونړ کښي د پېچ درې د واما تر نژدو پوري ځايان کړل ځو له دغو کلو او لارو ځخه ئې لا بيا هم د کابل – پېښور لار مصئونه کړې وي. دغسي ئې هم په باجوړ او دير کښي د چيترال تر لواړي کوتله پوري سپاهيان ځايان کړي ول. مخکښنه سرني سپاهيان (صافيان) لا تر اوسه پوري کندارو نوميږي.

ځنگه چي لا بيا هم په سيمه کښي وژني او ژوبلوني کېدلې، نو د ظهيرالدين محمد بابر نمسي د همايون زوی، محمدحکيم چي د کابل واکوال او د جلال الدين اکبر ورور ؤ، خپل يو سپاه سالار غازي درويش محمدخان ئې له يوء توکوميز گډوډ لښکره سره د اليشنگ د کاتيانو و جنگ ته ورواستاوء. دء له دغو کاتيانو نورستانيانو سره اوز جنگونه وکړل ځو دوی ئې له اليشنگ درې ځخه وايستل. د دغه جنگ بيان قاضي محمدسليم سالم په "صفتنامهٔ درويش محمد خان غازي" کتاب کښي ليکلئ دئ. دغه کاتيان و کتاگل درې ته ولاړل چي د دوی په نامه سره نومول سوې ده، خو مخالفانو بشگل بللې ده. په خپله ځايي کاتيان اوسېدونکي د بشگل Bashgal له نامه ځخه بد وړي. ځکه چي دغه نوم "په يوښ گل pa-yussh-gal" دئ، چي مفهوم ئې "د بلاوو دره Demon Valley" کيږي. په دغه دره کښي دوی اوز کلي لري چي دوه

لوی کلي ئې کامدېش او بگرامتال نوميږي. د دغي درې ترمخني آوسېدونکي، کلاشه، ئې ځيني د چيترال و خوا ته ځني اووښتي ول، او نور و وايگل Waigal درې ته ځني لېږدېدلي ول. چي دوی ئې کلاشوم Kalashumبولي. د کامدېش Kamdesh وروستړوني –دېش هم د بلي ژبي دئ.

هغه سپاهيان چي د نورستاني درو په خولو او دننه کښي د نورستانيانو د وژنو او ژوبلونو د مخنوي له پاره ځايان کړل سوي ول، په خپله ئې دوی د غلو ghoul (ړټو) بريدونو ښکار وگرځېدل. د باجوړ عمراخان اوز لښکر کښي پر نوستان باندي وکړلې، خو د هغيو د مرگنو بريدونو مخنيوی ئې نه وکړای سوای. دا ځکه چي نورستاني ځوانو جنگياليانو د خپلو دښمنانو په وژني سره د اتلوالي رتبې، نوم او نښان گټلای سوای. دی به پخپله ټولنه کښي د قدر او درناوي خاوند ؤ. ځکه نو يو نورستاني جنگيالی په يوازي سر سره د دښمن و اويجي او کلي ته د شپې له خوا ځخه ورننوتئ او هورې به ئې غلې حمله کوله. د دء وسله يوازي يو خنجر ؤ. دء به د تور وزگړي پوست اغوستئ ؤ او چيري به د کلي په نژدو کښي خزه ؤ يا آن چي د شپې له خوا ځخه به د دښمن و کلي ته ورننوتلئ ؤ. هورې چي به پر هر چا باندي يوازي پېښ سو هغه به ئې په دوو – درو شېبو کښي په خورا چټکتيا سره چړې چړاخ کړ او سر به ئې ځني غوځ کړ او له ځانه سره به ئې و خپل کلي ته د نخښي او ثبوت له پاره وبوړ. د خپل کلي په نژدو کښي به ئې د جنگ د هوداي په نامه خپله د بريا سندره په لوړ ږغ سره وويله چي دغه به ئې پر خپلو کليوالو باندي د خپلي سوبي زېرئ ؤ. دء به د خپلي بريا نخښي او نښاني د کلي او درې و

اداري مرکو Marako ته ورښکاره کړي، او هم به ئې ژمنه وکړه چې په نژدو کښې به د خپلې بريا په ويار و کلي او ټولني ته د قربانيو مېلمستيا ورکوي. دې په داسي کړنو سره و خان ته د ويار رتبه لقب او اړونده نښان ګټلای سوای چې دغه به يو پسول يا خاص ډول کالي اغوستنه وه. چې د دې د ټولنيز مقام او رتبې دغسي ښکار ندوينه او پېژندنه ئې کوله. دغه محرک ؤ چې د دوی جنګ ئې له ګاونډيانو سره دائمي جاري ساتلئ ؤ. څنګه چې غله (غنم، جواري) او مېوه په ښځو پوري اړه لري، نو د نارينه په هره ټولنيزه مېلمستيا کښې د ښځي ونډه هم وه. ای ورسره انډيواله ښځه هم د رتبې خاونده کېدله.

و دغو ناخوالو ته په عکس العمل کښې امير عبدالرحمن په ۱۲۷۴هـ ش (۱۸۹۵ع) کښې پر نورستان باندي لښکر کښې وکړه. و نورستان ته ئې توپونه پر کچرو باندي ورخېژولي ول چې د دوی کلي ئې په رامګل کښې په وويشتل. هغو رامګليانو چې و کولم Kulam [1] درې ته پناه وړې وه او توپونه ئې ليدلي ول چې څنګه ايسيرېږي او څنګه ويشتل په کيږي. نورستان چې ګڼ ځنګلونه لري نو دوی هم يوه غورسه ونه پرې کړه. د وني د تنې منځ ئې وکيښ. په دغه سوړه کښې ئې باروت، ګودړان او ډبري تخته کړې. بيا ئې نو له ال بګرام al-Bagram (لوی لوړ کلي) څخه په رامګل کښې د امير لښکر په نوښان ورکړ کله چې ئې و دغه لرګين توپ ته اور ورته کړ او هغه

هم درېز وهل. نورستاني جنګيان چې ئې و شاوخوا ته په نژدو کښې د سيل له پاره ولاړ ول، څوک ئې ووژل او څوک ئې ژوبل کړل، د کونده يې توپ طراحانو و نورو ته وويل: چې دلته ئې په دغه شمېر وژلي او ژوبل کړي دي، نو هورې به ئې په دښمنانو کښې لا په څه شمېر سره وژلي او ژوبل کړي وي!

د امير عبدالرحمن خان لښکريانو د رامګل ښځي او نارينه، لويان او کوچنيان بنديان بوتلل او په پغمان کښې ئې ځايان کړل. د دوی دره د پنجشېريانو له خوا څخه اشغال سوې وه.

کله چې شاه امان الله د افغانستان د تخت او تاج خاوند سو، دې د رامګل دره له پنجشېريانو څخه ورخالي کړه او رامګليان کاتير Katir ئې بيرته و خپلې درې او کلو ته ورستانه کړل.

***

د حاجي محمد رزمي ټولونه:

## ګل خبري

- که ته صادق او مهربان سړی يې ښايي ځيني کسان ستا د صداقت او مهرباني څخه ناوړه استفاده وکړي خو ته بيا هم صادق او مهربان پاته سه.
- د پښې ښويېدل ښه دي نه د ژبې ښويېدل.
- د ميني غشی د هدف نيولو تر مخه خپل نښان ولي.
- د ژوند د مفهوم پرابلم د ميني په راز سره حل کېږي.

[1] کولم Kulam پشيي نوم دئ. د الينګار درې د سيند په لوېديځه خوا کښې اوس هم پشيان اوسيږي.

# هنر او ادب

د استاد عبدالباري جهاني دوې غزلي:

## غزل

وهلې مې خواني ده په قمار د خرابات
یو څو شپې مې لا پاته دي پر ښار د خرابات

ناصحه له مغانه دې زړې کیسې راوړي
یو څه تر تا پوهېږمه په کار د خرابات

تر څو به تور او سپین د ګناهونو راته ښیې
ما ږیره سپینه کړې ده پر لار د خرابات

پښتون غیرت مې نن له خپله جیله څي دوږخ ته
له غاړې څنګه وباسم زنار د خرابات

چې نه اورې د جام له کنګرو د حق سندري
زاهده نامحرم یې د اسرار د خرابات

راځه چې دې رشتیا کم د خوبونو تعبیرونه
شبقدر مې لیدلی پر بازار د خرابات

احرام یې قبول سوی وي د خُم پر مستو شونډو
رندان مې دي لیدلي په سهار د خرابات

تازه مې کړې له سره **جهاني** د عمر پاڼې
په کړوپه ملا مې ولیکل اشعار د خرابات

چلوونکی:
وحید سباوون

## غزل

راځه نن پر خپل ښار باندې غزل درته لیکم
یوه پر کندهار بل پر کابل درته لیکم

تر څو به لا کړېږو د لستوني له مارانو
کیسې به د نااهلو د یرغل درته لیکم
وطن د قصیدو په اوښکو نه جوړېږي خلکو
یوه منصوري چیغه د ازل درته لیکم
قسمت مو تښتولي دي د ښکلیو پیزوانونه
پر سرو زخمي پاڼو مې پایل درته لیکم
راوړي مې یو څو تازه نغمې له جادوګرو
په کښت کې د اورونو به سنبل درته لیکم
پوهېږم چې مې اور په شګوفو دئ لګیدلی
څو اوښکې پر بادام او پر سنځل درته لیکم
تر څو چې ننګرهار او کندهار وي او زه یمه
نظمونه د نارنج او انار ګل درته لیکم
پلو چې یې نیولی وي په کور کې د اغیارو
غمیزه د ملالۍ د کاکل درته لیکم
بدي مې پښتنه ده سل کلنه به ځوانېږي
د اوښکو مې په سرو وینو بدل درته لیکم

شیخان چې مې پېغلوټې **جهاني** په زهرو وژني
د قاف د شاپیریو به اور بل درته لیکم

د استاد احمد صمیم دوه شعرونه

## د غم نغمه

ښه دئ چې خوښي مو بېګانه سوله
ښه دئ چې مو ډک هدیره سوله

دلته د غه لمر نور سو ځول کوي
ښه دئ چې تیاره مو مېلمنه سوله
ښه دئ چې شبکوره بېغمي لرو
ښه دئ چې فضا راته پیکه سوله
نور به سارنګی د ساندو نه اوري
ښه دئ چې بودۍ انا کڼه سوله
ښه دئ چې دا پاڼه مو په وینو وي
د غه سره صفحه مو نصیبه سوله
خپله ناپوهي باندي غرور کوو:
ښه دئ د ماتم خوا راسره سوله

ښه دئ چې **صمیم** مو بې صمیمه وي
دا د غم او غم نغمه خوره سوله

## حقیقت

خوشحالي چې د رخصت غوټه کړه تړوله
ناآرامه شپه هم راغله تر کهوله

مو ږ په سره اورکي سوځېږو لولپه یو
ته په دغه حال کي غواړې رانه سوله
شمله وروچې جوغې پر سجده کړې
دلته بیرته دوران راغی د پکوله
چې دا لوی سوداګران د وینو راغله
څه ارزانه ویني رانیسې په توله
په بې ننګه فقر څنګه افتخار کړو
دا ملنګ نیسي و هر چا ته کچکوله

لږ احتیاط کوه **صمیمه** خوله د ځان که
پام چې بیا په حقیقت نه کړې خوله چوله

د سعید لودین دوې غزلي

## غزل

نن مي په خیالي پرواز و لوړو اسمانو ته ځم
زه مي د جانان په دید و تېرو زمانو ته ځم

مېنه د بې رحمو مهربانه مصطفی غواړي
پل ئې د کاروان لټم دښتونو بیابانو ته ځم
یا خو به پیدا کړم زما د خیال او د زړګي مالک
یا به د سرو اوښکو لوی توپان سم ګرېوانو ته ځم
مخ چې روڼ څراغ وو او تیارې ئې روڼي کړي وې
کیف ئې د دیدار پوښتم و سوو پروانو ته ځم

زړونه په سینو کي کاڼي سوي دي **سعیده** نن
خکه د حلیم پېشواو سترو داستانو ته ځم

## غزل

ویښ که لوی خالقه هر یو رګ زما په ځان کي
ژوند د ژوندو راکه چې ژوندی سم په هر آن کي

روڼ مي که د سترګو تور په سپینو پلوشو باندي
تا چې باندي ووینم په دې تیاره جهان کي

زړه مي ستاله مینې هسې ډک کړې چې چینه غوندي
تنده کړي خړوبه ستا د تړو دې بیابان کي

تا ته چې درتلله هغه لار رقیب قبضه کړله
ته مي کړې لاس بری چې فاتح سم هر میدان کي

شپه مو د بېړۍ سوه د دریاب په ګردابونو کي
لاس د نجات راکړه په ظالم خوني طوفان کي

مځکي ته چې شا سي د تیارو او تنهایي سره
ته د **سعید** مل سې په ها تنګ لحدستان کي

حاجي عبدالظاهر څرک

## د طبیعت انقلاب

د پسرلي نسیم نه یوازي په مړو غوټیو کي د ژوند ساه پوکلې ده، بلکي د بعضي انسانانو په زړو کي ئې هم شاعرانه څپې راولاړي کړي دي. ډېري د شور ورځي دي، هر څه ښه خوند کوي، ګلان ټول غوړېدلي دي.

غوټۍ هم ځان سپرلو ته تیاروي، ټوله وني او نباتات د ژمي له درانه خوبه راویښ سوي دي او د نوي ژوندانه زېري ورانديي کوي، په باغو کي د ونو پر ښاخو او د ګل پر پاڼو د بلبلو او چوغکو چونهاری جلا خوند لري. داسي ښکاري لکه دوه مین چي پسله ډېره وخته سره یو ځای سوي وي.

د بوراګانو زمزمو هم چمنونه پر ښور راوستي دي. د بېدیا ښکلو نندارو د ځوانانو په زړو کي یو بدلون راوستلی دئ، غواړي چي د ګل او بلبل، غوټۍ او بورا څخه د مینې ډک الهامونه واخلي.

د سپین مخ او تور پیکي ځښتنان په ډېر نزاکت او مغروری د چمنو او باغو پر لور رهي دي، د ښکلا فرښتې د هوسۍ په شان تلولی تلولی ګرځي.

مګر افسوس چي پای ئې نه لرلای، ځکه چي شګوفه د رژېدو په حال کي ده او ځان د ونو د ځانګو څخه تورو خاورو ته تسلیموي. عمر وفا نه لري د باد په شان تېرېږي.

دغه ګلان چي نن ئې بلبلان په خوا کي ناست دي سبا مړاوي کېږي.

نواې خوانه!

د شګوفې او غوټۍ د ژوند څخه عبرت واخله. هغه مرغان چي نن په دې بڼ کي ګرځي سبا به په تش لاس وځي. په تېر پسي به ارمان کوي. وخت ژر تېرېږي.

د عمر پسرلی هم پای لري او د مرګ خزان ته منتظر دئ.
ته مغروري مه کوه او په خپله ځواني مه خطاوزه!

د خدای د مخلوق سره په لاس، پښه، ژبه او قلم سره احسان وکړه، د پوهي په زده کړه کي زیار وباسه. د سبا ورځي له پاره کله کله د مېړیانو ژوند ته ګوره، په دې نړۍ کي د طبیعت د انقلاب د لاسه هیڅ شی پر یوه قرار نه پاتېږي.

عبدالظاهر څرک

## شګوفه

تـــګ دي بـــاران دئ
د ســــرو ګلونـــــو

بـــل ســـول د مینـــي
هلتـــــه اورونــــه
دا چـــي رالـــــوېږي
د کــــومي ونـــــي
ستا بــه هــم خــوښ وي
د زلفـــــو ولونـــــه
ونـــي ګـــډا کــــا
پـــه دې محفـــل کـــي
نـــن ئـــې پـــه غـــاړه
کـــړل امېلونـــــه
زمـــا پـــه زړه کـــي
مینــــه نڅېـــــږي
چـــي ځوانـــان کانـــدي
مـــست اتڼونـــــه
وړمـــــه چلېـــــږي
و دغـــي خـــواتـــه
تـــه هـــم رادرومـــه
وکـــړه ســـیلونه
پـــه شـــنه چمـــن کـــي
تـــرونـــي لانـــدي
ســـره نـــڅې کـــړو
نـــن لیـــري زړونـــه
آشـــنایه راســـــه!
شـــــګوفه درومـــــي

راځـــه چـــي کـــاږو
نـــن آرمانونـــــه

د ثریا حمیدي افغان دوې غزلې

## غزل

لکه دا لمر چي ټول جهان ته روښنایي ورکوي
داسي صنم زما و زړه ته خوشحالي ورکوي
ملګرو زموږ په دې وطن کي دئ عجبه دستور
یو څوک یو چا ته ورکړي غم بیا تسلي ورکوي
څنګه پېغلاني اوربل خپور کړي څنګه ووهي خال؟
هره ورځ مرګ ته دلته غېږه شاه زلمي ورکوي
زه چي د غم سره کړم لوبې لېوني به یمه
د یار و غم ته تنها غاړه لېوني ورکوي
د "**ثریا**" نصیب همداسي دئ؛ په دې هم خوښه
نورو ته ورکړه سوه ګلان دې ته اغزي ورکوي

***

## غزل

ژوند مي يې، ارمان مي يې، نظر مي يې
شام مي يې، غرمه مي يې، سحر مي يې
ته مي د سینې په خلوتګاه کي یې
زړه مي یې، کوګل مي یې، ځیګر مي یې
ځکه خو نازونه پر تا ډېر کوم
یار مي یې، صنم مي یې، دلبر مي یې
ته مي غمشریک او د خوښي شریک
غم مي یې، خوښي مي یې، اختر مي یې
ورځ وي او که شپه وي فرق یې نسته دئ
ځکه "**ثریا**" سپوږمۍ او لمر مي یې

حاجي عبدالستار حیراني / میوند

## غزل

زه د عشق کمیس ګندم په تار د میني
په تلاش یم که پیدا سوه لار د میني
که هر څو مي کړي رقیب لاره اغزنه
ما ته نرم نرم ښکاري خار د میني
مینه بخت دئ مینه تخت دئ سلطنت دئ
چي ئې اېښې وي پر سر چلتار د میني
که څاپېره و رقیب ته پر مخ ورکړې
و به مومې اې شیدا وقار د میني
چي هم سوز دئ او هم درد دئ محبت دئ
هم لذت دئ همېشه ګداز د میني
داسي درد او داسي سوز ته لبیک وایي
**حیراني** تل حقیقي بیمار د میني

***

ګل محمد وفا

## غزل

تل تر تله به ودان وي هغه کلي
هم به خوښ هم به خندان وي هغه کلي
چي د علم ډېوه تل وي پکښې بله
لکه لمر هسي روښان وي هغه کلي
دښمنان به ئې ناتوان وي په تخریب کي
له غمو به په امان وي هغه کلي
چي د علم مشعل نه وي پکښې بل
حقیقت کښې ګورستان وي هغه کلي
چي قلم او توره دواړه پکښې مله وي
بې احتیاج به د زمان وي هغه کلي
چي قانون ئې وي د پاک قرآن پر لیکه
لامثال به د جهان وي هغه کلي
چي مؤمنه ئې څېره د مشرتوب وي
خود به ګل د ګلستان وي هغه کلي
چي افتاب ئې د وحدت وي پر هر غولي
پر **وفا** باندي به ګران وي هغه کلي

# د عبدالرحیم هاتف لیکونه

## (د حاجي عبدالظاهر څرک په نوم)

**د سر خبره:**

ښاغلی عبدالرحیم هاتف چي د کندهار د ډېرو لوړو لیکوالانو او شاعرانو څخه شمېرل کېږي فعلاً په هالنډ کي د پناهندګۍ ژوند تېروي. عمر ئې ۸۷ کالو ته رسېږي، اوس هم کله کله لیکني کوي. نوموړی ډېر لوی عالم او په اوسني لیکوال کتاب کي سوانح چاپ سوېده. زه د ډېر کوچنیوالي څخه ورسره پېژنم. زما پلار مرحوم شیخ صاحب د ده د ټولی له غړو څخه وو.

هاتف صاحب د سرپوزې د زاړه ښار په کوڅه کي باغونه درلودل، هره جمعه به دی د خپلو محدودو ائډیوالانو سره باغ ته تلی چي اکثره به ئې د کندهار ادیبان او شاعران ول. شیخ صاحب، آشنا صاحب، نومیالی صاحب، ویران صاحب او ریشا صاحب زما په یادېږي.

کله چي هاتف صاحب د ډاکټر نجیب تر سقوط وروسته هندوستان ته مهاجر سو ما د لیکونو له لاري د ده سره ارتباط ټینګ کړ او بعضي لاینحله پوښتني مي څني کړي دي چي ده په ډېر وضاحت د هغو جواب راته لیکلی دئ.

په دغو لیکونو کي شخصي او تجارتي موضوعات ما حذف کړي دي، یوازي مي هغه موضوعات اقتباس کړي دي چي زموږ د ټولني او څوانانو له پاره ډېر ګټور دي.

هاتف صاحب تر شعر په نثر کي لوی لاس لري. په عین حال کي دا لیکونه د ده د نثر ښه ترجماني کوي. د دې لیکونو له خپرولو څخه زما مقصد دا دئ چي کندهاري څوانان د خپلو پخوانیو مشرانو د نثر لیکلو د سبک څخه خبر سي او د هغوی د نثر په خوند وپوهېږي. څو عمر دمخه ئې په تلیفون کي راته وویل چي: د خط لیکلو څخه معذور یم او داسي رامعلومېږي چي فکري تمرکز د لاسه ورکوم.

نور زما او د ده د لیکونو سلسله شلېدلې ده یوازي کله کله تلیفوني پوښتنه پر کوم او زما د پوښتنو جواب په تلیفون کي راکوي.

حاجي عبدالظاهر څرک

ظاهرجانه، سلام علیکم!

خدای تعالی دي روغ او جوړ، سرلوړی او بریالی لره. د خپلي کورنۍ او خپلي پلرګنۍ سره. یو وخت ستا یو لیک غورځنګ

رالېږلی وو چې تر جوړ تازه علاوه دوستانه مشورې هم پکښې وې، خو که دغه ډول مشورې د یوه مشر له خوا رارسېدلي وای ما به ئې نوم نصائح ایښی وای.

په هغه لیک کې دي زه و دغي خبري ته رابللی وم چې کله کله خط دراستوم، ضرورت خو د دې خبري حتی موجود نه وو، هره پوښتنه جواب غواړي (و اما السائل فلا تنهر) او هر خط جواب غواړي.

که زه د سپین ږیرتیا عذر وړاندي کړم ممکن دا د ځنډمن جواب پلمه سي خو د سکوت یا لاجوابۍ بهانه نه سي کېدای، خو تر کهولت سربېره بله د ذکر وړ خبره دا ده چي پر دغه سربېره چي تا خپل د چمن ادرس راته لیکلی وو باور دي وسه چي هغه مي نه ولوستلای سو او ممکن د خط نه لیکلو دلیل همدغه وګاڼه سي.

په هر صورت هر څه چي ئې دلیل وي نو قسمت یا تصادف داسي راغی چي د خط لیکلو مجال مي و نه موند، که څه هم محترم استاد محمدنبي خان کله کله ستا ورلېږلي سلامونه را انتقالوي و علیه و علیکم.

کور دي ودان کور ئې ودان!

حق تعالی دي مرحوم شیخ صاحب ته خپل د رحمت په جوار کي ابدي ټاټوبی ور په برخه کړي، مغفور او مرحوم زموږ له پاره د ښو اسلامي او پښتني اخلاقو تمثال وو. کشکي د هغه په اخلاقو متخلق سو او زموږ له پاره ژوندی تاریخ وو. د هغه په فقدان کي به تاسي پر نورو درپاته نیمګړتیاوو سربېره د خپل ښار د معاصر تاریخ له ناخبرۍ سره هم زما په تخمین مخامخ یاست، خدای دي وکړي چي زما تخمین غلط وي. خو زه به پر هغه تخمین بنا د احمدشاهي ښار په باب لږ معلومات درته ولیکم. ګوندي په دې توګه مي خپل پور د مرحوم شیخ صاحب په مقابل کي کم کړی وي.

احمدشاهي ښار د یوه مستطیل شکله کلا په منځ کي پروت وو چي هغه مستطیل ډېر منظم هم نه وو. د مستطیل دوې اوږدې ضلع لمرخاته او لمر لوېده ته پرتې وې او لنډې ضلع ئې قطب او سهېل ته. تر ښار دباندي د کلا په موازات یو خندق کیندل سوی وو، غالباً به د کلا ختې له هغه خندق څخه ختلې وه، ویل کېده د کلا کاه ګل د سردار محمدعثمان خان په امر او زمانه کي وسو، تر هغه وړاندي دغي د ختو کلا کاه ګل هم نه درلود.

د کلا د داخلېدو له پاره شپږ دروازې وې، په دې شرح: د ښکارپور دروازه، د هرات دروازه، د توپخانې دروازه، د عیدګاه دروازه، د برو دروازه او د کابل دروازه.

په هغو زمانو کي یا حتی اتیا کاله وړاندي د حمل و نقل عمده وسایط یابوګان او حماران وه، چي له کابل څخه تر هراته او برعکس، له چمن څخه تر مشهده او برعکس به ئې مالونه وړه او راوړه او په لویو لارو کي به د غلو د ډلو سره دغه د نقلیه وسایطو مالکان چي خرکاران به ئې بلل او وروسته مشهور سوداګران سوه مخامخ کېده. ښار ته پر ننوتلو په هره دروازه کي مخصوص دروازه وان پر بار بارانه اخیستل. تقریباً ٦٧ یا ٦٨ کاله پخوا مي ښه په یاد دي چي زه په طفولیت کي ذاکر شریف ته چي زما د مور د مورګنۍ یا ماماخېلو کورونه وه تللی وم، له هغې خوا څخه د هغو دوستانو سره بیرته د کور خوا ته مخ پر ښار را روان وو، څکه چي زه ماشوم وم پر پښو نه سوم راتلای. نو ئې زه پر خره سپور کړی رارهي کړی وم.

کله چې مور د ښار په دروازه د ننوتلو هڅه وکړه دروازه وان یا خوځگیر خپل د حق الدخول غوښتنه وکړه. زما د ملگري څخه څه نه وه، دروازه وان زما له سره خولۍ واخیستل او هغه ئې په خپل حق کې وگرزول. په بدو ورخو کې به دغه د ښار دروازې د یرغلگرو پر مخ تړلي کېدې او دا ئې کلابندي بلل.

په افغانستان کې هر کله دغه حالات پېښېدل او کله چې به د ښار یانو آذوقه ختمه سوه نو به تسلیم سوه او د ښار دروازې به ئې پرانیستلې. وروستی کلابندی د سقویانو د زمانې وې. دا لوی لوی دروازې وې چې په یوه کجگرد شي به نصب سوي وې چې د توپ د گولۍ له اصابته خوندي وي. د منفردو اشخاصو د دخول او خروج له پاره به د ښار په لو دروازه کې یوه وړه دروازه گۍ بله هم ورکوله سوې وه چې د کلا د دروازې د بندېدلو پر مهال چې هره شپه به بندېدل د وتونکو او ننوتونکو له پاره د لوی دروازې هغه بر خه خلاصه پرېښووله کېده.

د کلو خلگ به د خپلو اکمالاتو په غرض ښار ته پر خپلو بوده گانو خصوصاً خرو راتله، څکه آس نازولی حیوان دئ لوکس خواړه غواړي او مخصوصه تربیه. دا په کندهار کې غیر له خانانو د بل چا په وس کې نه وه.

تر ښار دباندي اما د ښار سره جوخت د ښار د هري دروازې په مقابل کې کاروانسرایونه وه چې کله به کلیوال ښار ته وارد سوه د یوې اسمي حق الزحمې په مقابل کې به ئې خپل بوده د تټی سرای دار ته ورسپاره. په سر به ئې د علوفې توبره د بوده د خوړو له پاره ورواغوسته او دی به بېغمه په خپل کار پسې ولاړ. دغه تټی د هري دروازې په مقابل کې موجودي وې خو د عیدگاه دروازې په خوا کې مې زړه ته نه راگرزي.

په ښار کې د عامو خلکو د خبرولو او اطلاع ورکولو وسایل نه وه موجود له یوې خوا سواد کم وو، اخبار نه وو که وو هغه به پر وخت نه راووت او تېراج به ئې کم وو. نو د پخوا زمانو په شان به یو جارچي په لوړ آواز د کومي خاصي خبري یا ورکي له پاره په بازارونو کې پر هر څو قدمه اعلان خپراوه یا به خلگو پوښتنه څني کول چې څه پېښه ده.

زما په زمانه کې چې یو سپین ږیری جارچي لا له پخوا څخه پاته وو د هغه نوم (عمر جارچي) وو او په دې توگه به ئې اعلان کاوه: هلکو هې یو کوچنی هلک چې نوم ئې ... کال ئې ... له دوو ورخو څخه ورک دئ هر چا چې پیدا کړی وي ... ته دي ئې وروليِ او خپله شېریني دي محکمه واخلي.

د ده به اکثره اعلانونه د ورکو سوو خرو له بابته وه: هلکو هې! یو خر یا سپېره خر ... (صفات ئې) ورک دئ هر چا چې پیدا کړی وي ... ته دې ورولي او خپله شېریني دي محکمه واخلي. د دې خبري دلیل دا وو چې د تټی سرای دار به بې پروایي کول، بیا به ئې نو مالک جار پسي واهه.

یوه ورځ یو ساده کلیوال چې داسي فکر ئې کاوه چې د دغه سپین ږیري خر هره ورځ ورک وي په لار کې ورته ودرېدی او ورته وئې ویل: کاکا ته دي ولي خپل خر تینگ نه تړې چې هره ورځ دي ناړې وي چې سپېره خر مي ورک دئ، دا اوس څه کار دئ چې ته ئې کوې.

په مخه دي ښه
ستاسي خیرخواه
هاتف



ليکوال: ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا

# اووه لرغوني مدنيتونه



بسم الله الرحمن الرحيم – تمدن يا مدنيت د بشري ټولنو د ترقۍ او پرمختګ بشپړتيايي بهير دئ چي د طبيعي او ټولنيزو پړاوونو په ځانګړو شرايطو کي ظهور او وده کوي.

د بشر پېژندني او لرغون پېژندني علوم وايي چي په زرګونو کلونه لازم ول چي نيم لوڅی او وحشي ډوله انسان د تمدن مرحلې ته رسېدلی وای. دا ځکه چي ستر بدلونونه اول په بطالت او عطالت سره درومي، بيا مطلوب لوری نيسي. دا ستر بدلونونه په هر ځای او هره زمانه کي يو ډول نه بلکي د چاپېريال د حالاتو مطابق راټوکېږي او لويېږي.

لرغونپوهان وايي چي په ځينو مواردو کي، په ځينو سيمو کي، په ځينو وختونو کي ساده او ابتدايي بشري ټولني د بېلابېلو دلايلو پر اساس په مغلقو او مغلق ترو ټولنو سره وده مومي څو چي بالاخره په تمدن سره بدلېږي.

هر تمدن د لويو انساني طبقو په زحمتونو او مشقتونو سره ايجاد او رايج سوی دئ، خو کله کله بيرته د نورو انسانانو له خوا وران سوی او پر ځای ئې خپل هغې ودان کړی دئ.

لرغونی تمدن په اصل کې لرغوني واکمنۍ وې چې په کلتور، سیاست، علومو، صنعت او هنر کې د نننۍ نړۍ پرمختګونه او بنسټونه بلل کېږي. د تاریخي دورې لرغونی تمدن د ۳۰۰۰ کاله قبل المیلاد څخه تر پنځمې مېلادي پېړۍ پورې (یعني ټول ټال درې نیم زره کاله) موده په بر کې نیسي.

نو ښه به دا وي چې د نړۍ اووه لرغوني مدنیتونه وپېژنو چې هر یو زموږ د هیواد سره لږ او ډېر تړاو لري.

**لومړی:** په آسیا کې بین النهرین (د اوسني عراق د دجلې او فرات د سیندونو تر منځ سیمه) او کلده د نړۍ تر ټولو زوړ او لرغونی تمدن دئ چې تاریخ ئې څه باندې درې زره کاله قبل المیلاد ته رسېږي. د مدنیت دغه خورا لرغونی مرکز په درو برخو کې ډېر اوځار پرمختګ کړی وو چې هغه د نجوم، طب او ریاضی ابتدایي علوم وو.

په بین النهرین کې ډول ډول مدنیتونه تېر سوي دي. دلته بېلابېل لرغوني قومونه لکه اثوریان، سومریان، اکادیان، بابلیان او نور میشته وو. سومریانو لیکنه او د اوسپنې استعمال رامنځته کړ. بابلیان په ریاضي او نجوم کي مخکښان وو. اکاد په نننی عراق کې د فالوجه ښار دئ چې بیا سومریانو ونیوی. اکادیانو په ادبیاتو او هنر کې ښه پرمختګ کړی وو. اثوریانو په جنګي صنعت او ښار جوړولو کې ساری نه درلود.

**دوهم:** بل لرغونی تمدن هماغه مصر دئ چې تاریخ ئې درې زره کاله قبل المیلاد ته رسېږي چې تر ۳۱ قبل المیلاد کال پورې وپایېد. دغه تمدن د حکمت، ریاضي، طب او نجوم اړونده برخو کې ښه پوهه حاصله او هغه ئې وړاندې کړل. لرغوني مصریان په ریاضي او مهندسي کې ډېر مخته وو، په طب کې ئې ساری نه درلود، په اناټومي (د بدن په داخلي تشریح)، د زخمونو په تداوي او نورو علاجونو ښه پوهېدل. زخمونه به ئې په اومو غوښو سره پټۍ کول، تریاک ئې د درد آرامولو له پاره کارول، د میکروبونو د مخنیوي له پاره ئې ټوکر په عسلو کې واهه (په عسلو ئې لړی). جراحانو به مات هډوکي بیرته ځای ته وراچول او زخمونه به ئې ګنډل. پیاز او هوږه ئې د ښه صحت له پاره استعمالول، یعني هغه عنعنه چې تر ننه هم رواج ده.

هغوی ښځه او نارینه (بې له غلامانو څخه) د قانون له مخې برابر ګڼل چې ښه مثال یې د دوو ښځینه فرعونانو شتون دئ (لکه هاشیپ ست، او کلیو پاترا). باید وویل سي چې کلیو پاترا د فرعوني لړۍ وروستۍ واکمنه ده چې خپل سلطنت ئې د روم په وړاندې له لاسه ورکړ.

**درېیم:** بل ډېر لرغونی تمدن د مدیترانې د سمندرګي ختیځې غاړې او فلسطین دئ چې هلته فنیقیانو او هم

بني اسرائيلو د قبل الميلاد د درو زرو څخه تر دوو زرو کالو پوري په سمندري تګ راتګ، سوداګرۍ، صناعت، نساجي، د فنيقي مشهوري الفباء په ايجاد کي او هم بني اسرائيل په ديانت او توحيد او همدا راز د حکومت په تأسيس کي تر بل هر چا وړاندي ول.

**څلورم**: چين بل هغه هيواد دئ چي د لرغوني تمدن ځانګو ئې بولي. د دې هيواد مدنيت د درې زره قبل الميلاد کالو راهيسي اټکل کېږي چي تر ۲۲۱ قبل الميلاد کال پوري وپايېد.

چين يو مستقل تمدن لري چي په تېره بيا د صنايعو، نساجي، انځورګرۍ، ډېره توړلو، رنګ جوړولو، کنده کاريو، کاغذ جوړولو او بارود جوړولو په برخو کي ښه پر مخ تللی و. له دې نه علاوه د موسيقۍ، ادبياتو او فلسفې له مخي هم بې مثاله وو. ګڼ شمېر فيلسوفان، منجمان، تاريخ پوهان او ګرځندويان ئې لرلي دي.

لرغوني چين څلور مهم شيان ايجاد او رايج کړل لکه رسامي، کاغذ جوړول، قطب نما او بارود. د لمر تندره (کسوف) او د لکۍ لرونکو ستورو معلومات هم لومړی چينايانو ورکړل. غشي او لينده هم اول دوی ايجاد کړل چي وروسته د اروپايي جنګونو پرېکنده وسله سوه.

**پنځم**: د آريايانو سيمه او د هندوکش دواړي خواوي ډېر بډاى تمدن لري (چي ټول افغانستان او يو څه ايران پکښي شامل دئ). افغانستان د قبل الميلاد د درو زرو الی دوو زرو کالو په زمانه کي پرمختللي زراعت او د اوبو لګولو ښه سيستم درلود. کلک ښارونه او ډېر وګړي ئې لرل. د قبل الميلاد په لومړيو زرو کالو کي ئې ښه لاسي صنايع، سکې (مسکوکات)، طب، نجوم، نساجي او فلزکاري لرل چي په سيمه کي بې ساري وو.

ځيني لرغونپوهان دغه مدنيت بېل او مستقل نه بولي، بلکي د اباسين وادي په مدنيت کي ئې شامل کوي. يعني دا د اباسين يا شمالي هند د مدنيت يوه برخه او جز ګڼي. خو افغاني او منطقوي پوهان دا يو ځانته او بېل مدنيت بولي او دليل ئې دا دئ چي دلته د اصلي آريايانو ستره کتله پاته وه او مخ پر جنوب لوېديځ (يعني ايران ته) يا ختيځ (يعني هند ته) ئې مهاجرت نه وو کړی او خپل مستقل سکونت او مدنيت ئې درلود.

**شپږم**: هندوستان وروسته لرغوني تمدن دئ چي د ميلاد څخه يو نيم زر کاله مخکي د شرکي شرعيت او قانون، خدايي حکمت او فلسفې، منطق او رياضياتو، طب او نجوم، نساجي او فلزکاري څخه برخمن وو.

دغه تمدن تر ۱۰۰۰ قبل الميلاد کالو پوري وپائېد. د هند لرغونی تمدن مستقل او ځانګړی وو چي بيا په دکن او سيلون کي هم پسې خپور سو. دغه ته د اباسين تمدن هم وايي چي د هندوکش

ځخه د آریایانوتر راکوچېدو وروسته پیل کېږي.

د اباسین د وادي دغه تمدن اوسنی هند او پاکستان په بر کي نیسي چي زموږ د هیواد ختیځ ولایتونه هم پکښي شامل دي. د اباسین او سرَسوَتي سیندونو وادۍ ګاني د دوو لرغونو مدنیتونو (موهن جودیرو) او (هَرَپه) اصلي ټاټوبی دئ.

څه باندي سل کاله وړاندي هرپه په پنجاب کي او موهن جودیرو د نننی پاکستان په سِند کي کشف سول (یعني په اباسین وادِي کي). دلته د ښار جوړولو یو ښه پلان موجود دئ. آن د بدررفت (فضله اوبو د ایستلو) سیستم ئې دونه عالی دئ چي د نننی پاکستان، هندوستان او نورو آسیایي هیوادو تر دغسي سیستم بهتر دئ.

د پخواني هند تمدن څلور زره کاله قبل المیلاد ته رسېږي. خو د ښارونو جوړول ئې په ۲۷۰۰ قبل المیلاد کي کړي دي.

**اووم:** هماغه د اروپا دوې ټاپو وزمي یعني یونان او ایټالیا دي. یونان تر میلاد زر کاله مخکي د فلسفي علومو، طب او نجوم، ریاضي او هندسې، هیئت او نورو له پاره خورا ستر بنسټ کښېښود څو چي هغه ئې په نړۍ کي پسي خپور کړ.

لرغوني روم هم د یونان د علومو ځخه په اقتباس او پیروۍ سره خپل تمدن د نړۍ یو څه برخي ته ورساوه.

په هر صورت، لرغون پوهان د پورتنیو اوو قدیمي تمدنونو ځخه علاوه څو نور لرغوني مدنیتونه هم ډېر مهم بولي او د اوسني تمدن د بشپړتیا سره ئې تړي. د دې جملې ځخه د هیتیانو تمدن دئ چي د اوسنۍ ترکیې پر سیمه واکمن وو. ددې تمدن سابقه د ۱۳۴۰ قبل المیلاد ځخه تر ۱۲۰ قبل المیلاد کال پوري اټکل سوې ده.

بل مهم تمدن هم انکا نومېږي چي په لاتینه امریکا کي د نننۍ پیرو هیواد ئې مرکزي هسته وه (۱۲۰۰ ق م). ورپسې هم مایا تمدن دئ چي په نننۍ مکسیکو کي د ۲۰۰۰ قبل المیلاد ځخه تر شپاړسمي میلادي پېړۍ پوري غوړېدلی وو.

دې مهمي باریکۍ ته باید ځیر سو چي تاریخ پوهان هغه دوره چي انسان لا خط نه وو کشف کړی، قبل التاریخ دوره بولي. خو کله چي رسم الخط ظهور وکړ دا تاریخي دوره بولي. لاکن شرط ئې دا دئ چي د لرغونو ولسونو راپاته خطونه او ډبرلیکونه باید لوستل سوي وي. نو هغه خطونه او ډبرلیکونه چي تر اوسه کشف سوي او موجود دي مګر لوستل سوي نه دي، هغه ټوله تر تاریخ مخکي یا په قبل التاریخ دوره پوري اړه لري. کله چي دغسي خطونه او ډبرلیکونه ولوستل سي او مفهوم افاده کړي بیا نو تاریخي مرحلې ته داخلېږي.

په دې اساس د ختیځو هیوادونو تاریخي دورې یا پړاوونه د قبل المیلاد

څخه ۲۵۰۰ کاله وړاندي بلل سوي دي. دا ځکه چي د مصر او بين النهرين کوم رسم الخطونه چي لوستل سوي دي، همدومره سابقه او عمر لري. ولي د (موهن جو ديرو) او (هرپه) کشف سوي خطونه چي تر اوسه نه دي لوستل سوي، په تاريخي دوره کي نه شاملېږي. نو که دغه خطي نخښي هر وخت ولوستل سي، له امله به ئې زموږ د تمدن زوړوالی او سابقه يو دم شپږ زره کالو (يعني څلور زره قبل الميلاد) ته ورسېږي او د فعلي لرغونو مدنيتونو ريکارډ به مات کړي يعني په نړۍ کي به تر ټولو لرغونی تمدن وبلل سي.

د علمي پلټنو څخه داسي نتيجه اخيستل سوې ده چي تر ميلاد څه نا څه شپږ زره کاله مخکي لا په افغانستان او ورپورو سيمو کي انسانانو مدنيت درلود. دا ځکه چي د افغانستان په شمال کي، يعني مرو ته نږدې د (انو) په سيمه کي د مسو د استعمال څرک لګېدلی دئ.

د افغانستان په ختيځ کي د سند د وادي قبل التاريخ مدنيت (د هرپه او موهن جو ديرو تر منځ) په څه نا څه يو زر ميله ساحه کي خپور وو چي دې ساحې د بابل د تمدن تر ساحې څلور چنده، او د مصر تر تمدن دوه ځله پراخوالی درلود. دغه مدنيت د افغانستان په ختيځو سيمو کي د سند په ټوله پراخه وادي کي خپور وو، يعني هغه سيمه چي شمالي او جنوبي پلازمېني (هرپه او موهن جو ديرو) ئې دوې هستې وې. دغه تمدن د لوېديځو سيمو د مدنيتونو يعني بابل سره ټينګ روابط لرل. آن په ۲۰۰۰ قبل الميلاد کي هلته د هندي سوداګرو ټاکلي ځايونه موجود ول.

هغه آثار چي د بين النهرين په کيندنو کي تر لاسه سوي، ښيي چي د سند د وادي خلکو اعشاريه ارقام، وزنونه او اندازې پېژندل او هغه ئې کارول. دا لا څه، د افغانستان په ځينو برخو کي کيندنو ښودلې چي د قبل التاريخ دورې ښه مدنيت ئې لرلی دئ. د مثال په توګه د نادعلي، زرنج، ارغنداو، پنجوايي، منډيګک، هزار سُم، چهلستون، تره کمر، آق کپرک او نورو کيندني دي چي د لرغوني تمدن ښه سپړنه، څېړنه او څرګندوَنه لري.

که لرغونی افغانستان مدنظر ونيسو، نو و به ګورو چي په تاريخي دوره کي دوه خورا اوځار، مهم او بنسټيز مدنيتونه راټوکېدلي او غوړېدلي دي چي هغه (ويدي مدنيت) او (اوستايي مدنيت) دئ.

ويدي مدنيت تر ميلاد ۱۴۰۰ کاله مخکي شتون درلود چي ټاټوبی ئې افغانستان وو. ويدا هغه مذهبي، تاريخي او افسانوي سندري دي چي آريايانو زموږ د هيواد څخه شمالي هند ته تر کوچېدو مخکي ويلي وې خو تر دغه هجرت وروسته تدوين او توحيد سوي دي. ويدا څلور کتابونه لري چي ريګ ويد، سام ويد، اتهروا ويد او يجور ويد دي. په دغو کتابو کي د افغانستان د ځينو مهمو

خايونو، مشهورو او غښتلو اتلانو او لويو تېرونو نومونه هم راغلي دي (لکه پښتون، لغمان، کابل او ډېر نور).
اوستايي مدنيت بيا په ۱۲۰۰ قبل الميلاد کال کي په بخدي (بلخ) او د هندوکش په شمالي سيمو کي رامنځته سو. يو کتاب د هغه دورې څخه شتون لري چي اوستا نومېږي او پنځه فصلونه لري. څنګه چي دا ټول فرهنګ د بخدي او افغانستان زېږنده دئ، نو ځکه د هيواد په تاريخ کي ډېر اهميت لري. اوستا د لرغوني افغانستان د وګړو مدني، فکري او فرهنګي اوضاع ډېره ښه او مفصله بيانوي.
په هر حال، مهم ټکی دا دئ چي پورتني اووه لرغوني مدنيتونه د تاريخي او نني افغانستان سره ټينګ او نېغ تړاو لري. نني افغانستان خو ټوله ښه ترا پېژنو، لاکن تاريخي افغانستان يعني څه؟ او د تاريخي افغانستان سره د نومړو مدنيتونو تړاو په کوم ځاى کي دئ؟ راځئ چي وئې شنو:
۱ ـ کله چي موږ تاريخي افغانستان وايو، نو ټولي هغه سيمي په نظر کي نيسو چي په تاريخي پېښبو او د سياسي، مدني او فرهنګي پېښبو په جريان کي د افغانستان سره اشتراک او تړاو ولري او د ګډو تاريخي عواملو له مخي مشابه اوضاع ولري.
نو په دې جغرافيوي ساحه کي د ايران ختيځ لوری د سند د سيند څخه د خراسان تر پايه (دامغان) شرقاً او غرباً شامل دي. په شمال کي بيا د آمو د شمالي برخو وادی ګانيتر سمرقند او د پامير د غرونو تر لمني پوري رسېږي. دغه ټوله پراخه سيمه عموماً ګډ او تړلی تاريخ لري او همدا ئې د تړاو اصلي علت دئ.
۲ ـ د پورتنيو اوو لرغونو مدنيتونو سره د افغانستان د مضبوط او مستقيم تړاو بله وجه دا ده چي افغانستان د هغوی ټولو په منځ کي پروت دئ او د هر تمدن د خپلولو او تقديمولو مهمه کړی جوړوي. وګورئ د بين النهرين، ختيځي مديترانې، مصر، ايران، يونان او روم مدنيتونه د يو بل سره آشنا دي آن يو له بله ئې اقتباسات کړي دي. حال دا چي د چين او هندوستان مدنيتونه هر يو بېل بېل او يو له بله بې ارتباطه يعني مستقل وو. نو دا افغانستان دئ چي هم د مديترانې د ختيځو سواحلو د مدنيت سره آشنا او تړلی وو او هم ئې د هند او چين د مدنيتونو سره تهذيبي او مدني راکړه ورکړه لرلې ده.
۳ ـ د تړاو بل مهم او بنسټيز دليل ئې دا دئ چي افغانستان د ماوراء النهر (مرکزي آسيا) د دښتونو او هوارو سره مرتبط او منبتی دئ او دا هغه سيمه ده چي تر تاريخی دورې ډېر پخوا لا د انسانانو څخه ډکه وه (لکه څنګه چي لرغوني آريايان له هماغه خواوو څخه زموږ هيواد ته راغلي دي). نو همدا منځنۍ آسيا يوه تر ټولو لرغونې بشري هسته ده چي تاريخ ئې زموږ د تاريخ سره

ټینګ تړلی او جاروتلی دئ. خو هلته بیا د شمالي هند او ایران تاریخونه هم د افغانستان سره کټ مټ تړاو لري. په دې حساب افغانستان هغه کړۍ ده چې دا دواړه مدني ځنځیرونه سره وصلوي. د یوې خوا تهذیبي، ثقافتي، مذهبي او مدني ارزښتونه ئې بل ته ور تېر کړي دي او د هغه لوري هغې ئې بیا دا بل ته انتقال کړي دي.

پس ویلای سو چې د سیمي تاریخونه، غورځنګونه، خوځښتونه او تاختونه ټول هغه کړۍ دي چې د لرغوني تمدن ځنځیر ئې جوړ کړی دئ. افغانستان د دې کړیو په محراق کي ځای لري. همدا علت دئ چې که موږ د هند تاریخ لولو ، یا د ایران تاریخ مطالعه کوو، یا د منځنۍ آسیا د تاریخ پاڼي اړوو، تر څو چې افغان تاریخ و نه لولو دا ټول تاریخونه به نیمګړي وي او که هغوی خپل تاریخونه ولولي خو زموږ تاریخ ورسره مل نه کړي، هم به هر څه نیمګړي وي. د سیمي منجمله افغانستان د لرغوني تمدن هره کړۍ مثلاً فرهنګ، هنر، تاریخ، صنعت، مهندسي، علوم او نور کټ مټ مشترک او یو د بل متمم دي.

لنډه دا چې د اباسین، سرسوتي، بین النهرین د ښاري مدنیتونو د اوج پر مهال ننني افغانستان د دې ټولو مدنیتونو تر منځ د یو پُل حیثیت درلود.

د پورته لنډ مبحث څخه معلومه سوه چې اووه لرغوني مدنیتونه د اوسنۍ تکنالوجۍ د بنسټ ډبره ده او افغانستان د هغه منځوۍ نقطه جوړوي. نو ځومره حتمي او لازمي ده چې د اوو لرغونو مدنیتونو دغه محراقي کړۍ یعني افغانستان تر وسه وسه په صادقانه، مخلصانه او صمیمانه سوله سره ونازوو او پرې نه ږدو چې د ځینو افرادو، ډلو او کړیو د ځاني ګټو او هوسونو قرباني سی، والسلام (ن. صمد).


اړونده مأخذونه:

۱. د پخوانۍ نړۍ مدنیت: د ښارونو او حکومتونو طلوع (دریم جلد). ګورن بَرن هرټ، امریکا، ۱۹۹۴.

۲. د زړې نړۍ پخواني مدنیتونه: چارلس کیت مېزلز، لندن، ۱۹۹۹.

۳. د لرغوني نړۍ ټکرونه: جیري ایچ بینټلي، نیویارک، ۱۹۹۳.

۴. تاریخ مختصر افغانستان (چاپ سوم)، مرحوم عبدالحی حبیبی؛ دانش کتابخانه، پشاور، ۱۳۷۷ش.

۵. افغانستان در مسیر تاریخ: میر غلام محمد غبار، کابل، ۱۳۴۶شمسی، (۱۹۶۷ میلادی).


پای

اجمل ښکلی/کابل پوهنتون

# سمبولیزم او ابهام

په اروپا کې د نولسمې پېړۍ په وروستیو او د شلمې پېړۍ په لومړیو کې یو ادبي خوځښت تېر شوی چې سمبولیزم ورته وایي، چې په فرانسوي کې میلارمې، بودلیر او په انګلیسي کې تي ایس ایلیټ پاللی.

سمبولیزم د ختیځ په تصوفي شاعرۍ کې له پخوا نه دود وو، خو په اروپا کې د نیچرلیزم، ریالیزم او رومانتسیزم پر ضد راپاڅېد.

له نیچرلیزم سره د سمبولیزم په دې ورانه وه چې نیچرلیزم د بهرني طبیعت انځورنه د هنر کار باله، خو سمبولیزم درون هر څه باله.

له ریالیزم سره ئې په دې نه لګېده چې ریالیزم ئې په مستقیمه ژبه د ظواهرو په پالنه تورناوه. د سمبولیزم له مخې حقیقت د انسان داخلي کیفیتونه دي چې د هنر موضوع جوړوي او بیا چې په شاعرۍ کې یو شی په خپل دود نام راوبولې (موخه ترې مستقیمه ژبه ده)؛ نو د شعر درې برخې ښکلا دي په سیند لاهو کړه.

رومانتسیزم ئې په دې خوښ نه وو چې دوی د شاعر فردي احساساتو ته ارزښت ورکاوه، خو سمبولیستانو په انساني احساساتو کې پر کل ګروهمن ول، بلکې سمبولیستانو د احساساتو پر ځای کیفیتونه منل او لکه د ایلیټ د (عیني پیوستون/توازن) تابع ول. مطلب چې د شعر خوند په احساساتو کې نه، ژبه کې دئ، موسیقۍ کې دئ او په سمبولونو کې دئ. رومانتستانو په شاعرۍ کې خیال معیار ګڼلی وو، خو سمبولیستانو پخپله کلمې قدرمنې کړې وې.

سمبولیستانو هنر د دروني کیفیتونو انځورنه ګڼله. کیفیتونه لکه د موسیقۍ د سر و لی غوندې سره پېیلي وي، ځکه نو سمبولیستانو په شعر کې موسیقۍ ته اهمیت ورکاوه، متجانسي کلمې ئې ډېرې کارولې. میلارمې وایي، چې شاعري د موسیقۍ یو ژانر دئ.

کیفیتونه لاشعوري وي او د سمبولیستانو په اند، د علم کار له شعور او د هنر کار له لاشعور سره وي. هنر که مو د شعور وچ بوټي ته وتاړه، له ولږې به ئې ووژنې؛ نو دغه لاشعوري کیفیتونه یواځې په سمبولونو کې وړاندې کېدای شي. په دې اړه فروید او یونګ هم خبرې کړې. فروید او

یونګ (یونګ د ټولنیز لاشعور ګروهمن وو)، لاشعور د انسان د شخصیت د سرو سپینو مالک ګڼي. د دوی په وینا، لاشعور چې شعور ته سر راښکاره کوي، په سمبولونو کې ئې راښکاره کوي او دا سمبولونه مبهم وي، خو یو څه ئې په شعور کې واضح کېدای شي. مطلب دا چې د انسان په لاشعور کې داسې بې سر و پښو کیفیتونه وي، چې د وتو لار ګوري، خو د مبهمو خوبونو غوندي ئې پوهاوي ته په شعور کې ژبه نه وي، ځکه نو سمبولونه پور کوي.

سمبولیستانو د خپلو کیفیتونو په انځورنه کې د لاشعور لاس مانه، ځکه ئې نو پر شاعرۍ د ابهام پرده خپره ده. صوفیانو هم د خپلو اشراقي (فروید ورته لاشعوري وایي) تجربو د ترسیم له پاره سمبولونه کارولي، خو د دوی سمبولونه لکه د ځینو خاموسمبولیستانو غوندي واضح دي، ګني سمبولیستانو صراحت ته چندان اهمیت نه ورکاوه، ځکه چې د صراحت له سرسري باد سره هم د هنر شمعه مري.

سمبولیستانو ویل چې که لوستونکی اغېزمنوې، نو خپل لاشعوري کیفیتونه بې د خیال له وسیلې، مستقیماً په کلمو کې وراندي کړه. مطلب دا چې پوهاوی او د معلوماتو رساوی د علم کار دئ، د هنر کار د کیفیت رسول دي، پر لوستونکي خپل حالت محسوسول دي؛ نو انسان له ډېرو داسې کیفیتونو مالامال دئ چې په بهرنۍ نړۍ کې توجیه کېدای نه شي، دودي کلمې ئې د بیان تاب نه لري او ضرور هم نه ده چې هرومرو دي مانا ولري. همدا بس ده چې د انسان په درون کې یو کیفیت دئ. چې کیفیت شو، نو د بیان اړتیا ئې هم جوته ده. لکه په اردو کې چې د ثناء الله میراجي شاعري لولې، تر اخره به پوه نه شې، چې څه وایي یا لکه د ن م راشد نظمونه (حسن کوزه ګر، ایران مین اجنبی او...). همداسې د میلارمې او ټي ایس ایلیټ نظمونه ( waste land او...) هم دي چې په مانا ئې سړی اسانه نه پوهېږي، خو دومره ده چې دا شعرونه لولې، یو مرموز کیفیت به انګېرې، لکه له دننه نه چې سړی مات وي. په پښتو کې لکه چې د سمبولیزم دومره پوخ شاعر نه دئ تېر شوی، چې په خبره خو ئې چندان پوه نه شې، خو یو کیفیت احساس کړې. د غني خان ځیني شعرونه چې ګډوډې ورته وایي، د فلسفي بحث له امله نه، د همدغسې سمبولونو له کارولو مبهم دي، سړی پرې ډېر نه پوهېږي.

ابهام له سمبولونو پیدا کېږي. په شاعرۍ کې لومړی تشبیه وه چې دواړه خواوې (مشبه او مشبه به) به پکې یادېدې، خو وروسته وروسته خبره پېچلې شوه او استعاره هم راووته. په استعاره کې یوه خوا (مستعارمنه) یاده شوه، خو موخه پکې مستعارله وه. دلته خو د تشبیه غوندي دواړه خوا نه وې، چې ذهن دې اصل مانا ته ورسوې، نو د مستعارله د معلوموالو له پاره قرینه جوړه شوه. مثلاً:

– سروه په دېواله راښکاره شوه.

یا لکه سیف الرحمان سلیم چې وایي:

**د زړه په کور کې چې دې ځای ورکړلو**

**سلـــیمه کـــور ته دې بلا راوسته**

په نثري جمله کې (سروه) د (نجلۍ) له پاره مستعارمنه ده او قرینه (په دېواله راښکاره کېدل) دي. له سروي موږ دا تمه نه لرو، نو چې له دې مانا مو پام واوړي، ورسېدو چې (سروه) هغه اصلي سروه نه ده، بلکې موخه ترې بل څه شی دئ.

په بیت کې (د زړه په کور کې) ځای ورکول قرینه ده، چې پوهوي مو چې بلا ته څوک په زړه کې ځای نه ورکوي، دا چې په زړه کې ئې ځای ورکړی، بل څوک ده.

تر استعارې وروسته دریم او وروستی گام سمبول وو، چې تر استعارې هم پېچلی دئ.

په استعاره کې همدا بهرنۍ قرینه ده چې موږ لاري ته سموي او د کلمې حقیقي او مجازي مانا بېلوي، خو په سمبول کې دا ډول بهرنۍ قرینه نه وي، چې لارښوونه درته وکړي. په استعاره کې د کلمې د حقیقي او مجازي مانا تر منځ کلک تړون نه وینو، خو په سمبول کې دا تړون ډېر کلک وي او په تصوفي شاعرۍ کې چې سمبولونو ته تمایل وینو، یو لامل ئې دا هم دئ چې صوفیان د تصوف غوندي په دې کې هم د (وحدت و کثرت) ننداره کوي. یعنې د سمبولونو له کارولو هم سمبولیکه استفاده کېږي. د سمبول د حقیقي او مجازي مانا تر منځ د کلک پیوستون له امله له سمبوله لومړۍ (حقیقي) مانا هم اخیستی شې.

استعاره چې په بهرنۍ قرینه ولاړه وي، سمبول په داخلي یا ذهني قرینه ولاړ وي. د شاعر او لوستونکي تر منځ یو پوهاوی یا تړون موجود وي، زه چې ساقي یادوم مراد مې دا ساقي نه، خدای دئ. له شرابو مې موخه دا شراب نه، الهي مینه ده.

په استعاره کې چې بهرنۍ قرینه وي، د ژبې د قواعدو تابع وي. قرینه د استعارې مانا محدودوي، ځکه له استعارې همغه یوه مجازي مانا اخیستلی شې، خو په سمبول کې چې بهرنۍ قرینه نه وي، څو ماناوې اخیستې شې.

کاروان وایي:

**هاغلته لري د نښتر په تن کې غشی ښخ دئ**

**هاغلته لـري تودې ویني له غـــزال څـاڅي**

له (نښتر او غزال) نه پر حقیقي مانا سربېره څو مجازي ماناوې اخیستې شئ. دا هم یو لامل دئ چې په سمبولیزم کې ئې ابهام پیدا کړی، ځکه چې موخنه مانا مشخصه نه ده. زیاتره وخت خو لوستونکي د سمبولیستانو له شعرونو همدا لومړۍ مانا واخلي او اصلي مانا پاته شي.

د شاعر او لوستونکي تر منځ دا تړون په استعاره کې هم شته، خو هغه خارجي یا قانوني دئ او دا ذهني او غیرقانوني.

سمبول پر ژبه نه، پر منطق ولاړ دئ، ځکه وایو چې په سمبول کې قرینه ذهني وي. میلارمې او نورو سمبولیستانو چې دا خبره هېره کړې وه، شعرونه ئې مبهم پاته شول، داسې لکه خوب چې گوري، لکه له ځان سره چې گونېږي. په سمبول کې چې دې ذهني قرینه مشخصه نه وي، لوستونکی

غریب به سر وهلی بر وهلی گرځي او په خبره به دي نه پوهېږي. د اردو شاعر نذر محمد (ن م) راشد په یوه نظم کي سمندر د لاشعور له پاره د سمبول په توګه کارولی:

**د سمندر په بېخ کي**

**د سمندر په مرموز بېخ کي**

**یو صندوق دئ**

**په صندوق کي یو ډبی دئ**

**په ډبي کي بل ډبی دئ**

کولنګ ووډ لیکي چي کوم کیفیت چي شعر کوي، د کلمې په وضعي مانا کي ئې مه وایه، ځکه چي وضعي مانا ئې دربانديې احساسوي نه، بیانوي ئې او په بیانولو احساسات نه راپارېږي.

سمبولیستانو د غزل غوندې قافیه وال چوکاټونه د خپلو لاشعوري کیفیتونو د دقیقي انځورني له پاره تنګ بلل، ځکه چي لاشعور خورو وور وي، د قافیه وال شعر په لوښي کي نه راټولېږي، نو نظمونه ئې ډېر لیکل، چي ډګر ئې پراخ دئ او لاشعور ته پکي خنډ نه وي، خو په نظمونو کي ئې د ابهام بل لامل د نظم د بېلابېلو اجزاوو تر منځ بې نظمي ده. د سمبولیستانو نظمونه نره سمبولونه دي. د سمبولیزم نامتو فرانسوي شاعر بودلیر وایي، چي انسان د سمبولونو په ځنګله کي اوسي. بیا دا داسي سمبولونه دي چي له یو بل سره د یوه ګډ مفهوم په جوړولو کي ستونزه لري. مثلاً؛ په یوه ځای کي درته ونه یادوي، ورپسې جوخت بله مسره کي اسمان او بله کي ماشین؛ نو ته حیران شې، چي دا څه وایي.

سمبولیستان د دې توجیه داسي کوي، چي لاشعور د شعور غوندي محدود او منظم نه وي. لاشعوري کیفیتونه د تخییل غوندي خواره واره، بې سر بې پښو او بې منطقه وي؛ نو چې دا کیفیتونه دقیق رااخلې او منطق او شعور ته پکي ځای نه ورکوې، نو چې څرنګه دي، داسي به ئې رااخلې، داسي لکه خوب چي ګورې، لکه له ځان سره چي بُهېږې.

د سمبولیستانو سمبولونه د تصوفي شاعرۍ غوندي ګډ او تکراري نه دي، چي سړی پرې په اسانه پوه شي، بلکي نوي (تکرارېږي نه) او فردي دي. په دې ئې درک سخت دئ چي کومه کلمه د څه شي له پاره کارېدلې او رښتیا هم د سمبول په توګه کارېدلې که نه.

سمبولیستانو د سمبول په توګه د کلمې د کارولو له پاره معیارونو ته چندان پام و نه کړ، بې له مشابهت و مناسبته ئې هره کلمه هر شي ته د سمبول په توګه وکاروله، چي دې ئې په کلام کي ابهام پیدا کړ.

سمبولیستان وایي چي سمبول تکرار شي، په نښه یا ساینو واوړي او د مانا درک ئې لکه او به اسانه شي. بیا ورته سمبول نه وایي. سمبول هغه دئ چي مانا پکي پټه وي، هله رمز هله سمبول دئ.

د ادب موخه د مفهوم انتقال یا تبلیغ دئ. سمبولیزم چي د تبلیغ و صراحت پر خلاف وو، ډېر و نه پایېد، ژر ئې مرګ خوله په خاورو ورټپه کړه.

پای

# د اسلم لوڼ د شاعرۍ څو ځانګړني

اسلم لوڼ د هنري تحول د زمانې له مخې د کلاسیکو او نیوکلاسیکانو تر منځ له وصلوونکو شاعرانو څخه دئ، ځکه خو ئې شاعري په خپله کلاسیکه زمینه کې څه نوي رنګونه او ځانګړنې هم لري. د "پښتانه شعراء" په دریم ټوک کې دی، د حمید مومند پیرو، بلکې د نوموړي د سبک "یو، وتلی او تکړه استاد" بلل شوی دئ[1].

راځئ وګورو چې زموږ د دغه متصوف شاعر د شعر کومې ځانګړني دي، چې نوموړی د هندي مکتب او بیا د حمید د سبک استاد ګڼل شوی دئ؟

علامه شبلي نعماني په شعر العجم کې په دې باور دئ، چې بابا فغاني شیرازي د هندې مکتب بنسټ ایښی دئ، تر فغاني وروسته خیال بندي، مضمون آفریني او دقت پسندي ورو ورو غزلونو ته مخه وکړه او له عرفي نیولې تر ظهوري، جلال، اسیر، طالب آملی او کلیم پورې شاعرانو وپالله، یو شمیر ادب مؤرخین باور لري، چې د هندي سبک زیږنځای اصفهان دئ او صایب تبریزي ئې له مشاهیرو څخه دئ، چې نوري څیرې ئې میرزا بېدل، شوکت بخارایي، غني کشمیري، ناصر علي سرهندي او نور دي. زما په نظر په دې اړه اروانباد استاد روهي یو په زړه پورې تحلیل لري: " ... هندي مکتب په حقیقت کې د اسلام د روحیې پر اساس د ټاکلې دورې فارسي



څېړندوی عبدالغفور لېوال

ادبيات دي، چې تر زياتې اندازې په هند کې د مغلي پاچهانو د واکمنۍ دورې ته منسوب ګڼل کېږي[۲]". د استاد روهي په وينا دا مکتب د هند د درې ګونو لرغونو ادبي عنعنو سره توپير لري.

په هر صورت پښتو ادبياتو ته د هندي سبک يو شمېر ځانګړني هغه وخت راغلې چې دغه مکتب په اوج کې وو. داسې باور شته، چې د دغه سبک اساسات تر نورو وړاندې عبدالحميد مومند د اعتدال په حد کې رعايت کړي دي او کاظم خان شيدا د کمال حد ته رسولي دي[۳]. د هندي سبک شاعري د تشبيهاتو، استعارو او کنايو د نوښت شاعري ده، د غړونو داخلي موسيقي، د بديع فن، د کلام ظاهري ښکلا، د مانا او عبارت تر منځ باريکي او لطافت، لنډون او له ايطاله مخنيوی، مضمون آفريني، دقت، د مضامينو نوښت او تنوع، مبالغه او اغراق، شاعرانه تعلی يا ځان لوړاوی، تغزل او باريک بينی ئې جوړښتي ځانګړني دي، محتوا ئې مينه، اخلاقيات، عرفاني تمايلات او کله کله فلسفي افکار دي.

په کندهاري شاعرانو کې د هندي مکتب پارسي شاعرۍ، په تېره بيا بېدل ډېر مينه وال درلودل، ويل کېږي، چې پخپله تيمورشاه دراني او د هغه د دربار شاعر "افغان )"، سردار مهردل خان مشرقي، سردار غلام محمدخان طرزي، محمد امين خان عندليب او نور د بېدل مينه وال ول، له پښتنو شاعرانو څخه په تيره بيا د حميد مومند، کاظم خان شيدا او شمس الدين کاکړ نازکخياله شاعري لوستل کېده، څکه خو دا عجيبه نه ده، چې اسلم لوڼ او نورو کندهاري شاعرانو د هندي سبک پر اساساتو برابره شاعري کړې وي.

زموږ د ياد شاعر يو شمېر غزليزې بېلګې ښيي. چې د هندي سبک ظرافتونه او رنګينۍ د شاعر د ژبې له ځانګړيو نوښتونو سره لاس يو کوي او په دې توګه د هغه شاعرۍ ته يوه ځانګړې ښکلا بخښي. راځئ د حميد مومند د نازکخيالۍ رنګ او خوند د لوڼ په دغه غزل کې بيا وڅکو:

**مـخ و شـونډي دې پيالـه پـر لـه شراب**
**کـه لالـه ده پـه دسـته کـې د ګـلاب**
**چـې پـه شـپه لـه خلکـو پـټ شي معلومېږي**
**تـورولی دي پـه حـسن دی آفتـاب**
**پـه کتـو د لمـر ختـو دي حـسن ايـشي**
**مـخ ئـې مـه ګڼـه لـه سـيمه د سـيماب**
**سر تـر پـښو سره لـه پوښـه بـاريکي ده**
**کـه د لمـر دمخـه پـروت دئ پـر ګـلاب**
**د لاهـوت مقـام بـه هـر چا تـه ښکاره شي**
**لـه يـوه مخـه کـه پورتـه کـړي نقـاب**
**د احـد آواز لـه هـره ترنګـه خيـژي**
**د نفـس پـر تـار وهـم د زړه محـراب**
**چـې پـه وصـل دي اسـلم نـه آبـادېږي**
**لـه هجرانـه بـه دې وي هـسې خـراب[۴]**

په شعر کې د قراردادي وزم تر څنګ د منځني يا داخلي آهنګ رعايت د شعر مترنم ارزښت زياتوي او د شعر اوريدل نور خوندوړوي، د پورتني غزل په يوه بيت کې ئې وګورئ:

**پـه کتـو د لمـر ختـو دي حـسن ايـشي**
**مـخ ئـې مـه ګڼـه لـه سـيمه د سـيماب**

په دې بيت کې د ( کتو ) او ختو تکرار او بيا د (سيمه ) او سيماب پيليزه هم آهنګي ډېره په زړه پورې ده. د داخلي آهنګ رعايت داسې دئ، چې سره ورته يا هم مخرجه توري او يا هم کله کله د سره نږدې

مخرجونو حروف تر منظمو و ښکل شويو څپو وروسته پيل کېږي. رضابراهني د داسې متجانسو غږونو تکرار ته خوځنده (متحرک) وزن وايي[5]. په داسې وزنونو کې د غږونو تناوب، ضرب او تکرار (البته تر ځېل طبيعي بريده چې خبره تصنع ته و نه وځي) د شعر په فني کمالاتو کې شمارل کېږي او د هندي سبک يو شمېر پلويانو په يو شمېر بيتونو يا کله کله په بشپړ غزل کې رعايت کړی وي. راځئ داسلم لوڼ يو غزل وګورو. چې په څو بيتونو کې ئې دغه کمال ښوولی دئ:

**خـم دئ د خمـر د سـاقي پـه پيالـه نـه تـشېږي**
**نن دي په خوله د مهر مست کړه ،خواله نه تشېږي**
**شوخي د شونډو دي زمـوږ پـه مچـه نـه کمـېږي**
**لـه رنـګ راسره پيـل پيالـه د لالـه نـه تـشېږي**
**د مخ د خط نه خط پر خيال کاغذ وکښل څه نه دي**
**پـه مرغـزار ګـل نـس د مـست غزالـه نـه تـشېږي**
**پـه عـشق پرکـار دورلـه خپلـه نقطـه مکـړه ګوښـه**
**اخګر پـه غيـږ کـې ميـان د تـش جوالـه نـه تـشېږي**
**بحـر پـه نهـر څـه پـروا لـري چـې درد سي ځنـي**
**د مـين زړه ډک پـه کـړه آه و نالـه نـه تـشېږي**
**نـه کېـږي وصـف د صـنم د خـال و خـط پـر قلـم**
**پـه شـکر شـکر کـې طـوطي بنګالـه نـه تـشېږي**
**د سپي رقيـب راسره بحـث بـس کـه بـس اسـلمه**
**دجـال خجـل جنجـال کـول قوالـه نـه تـشېږي[6]**

په شعر کې د انځور جوړوني يو بڼه داسې ده، چې په يوه واحد ذهني چاپيريال کې څو انځورونه له بېلابېلو شيئي تمثيلونو سره د اصلي انځور له پاره استخدامېږي. يو بول ئې چې رضا براهني ورته افقي تصوير جوړونه وايي داسې ده چې دوه يا څو فرعي انځورونه د يوه اصلي انځور د روښانه کولو له پاره کارېږي او ډېر خله اصلي انځور په پای کې راځي. په کلاسيکه شاعرۍ کې داسې انځور هستونه نادر کار ګڼل کېږي، ځکه په غزلياتو کې چې هر بيت بېل مانيز جوړښت لري، داسې انځوروونه سخت کار دئ، دا هڅه په نويو ازادو شعرونو کې ډېره دود ده، مګر زموږ شاعر په يوه ښکلې رباعي کې همداسې يوه بريالۍ انځورهستونه لري وئې ګورئ دوه عيني فرعي انځورونه او بيا د يوې عيني او ذهني تصويري مجموعې بريالۍ پايله:

**عـشق چـې سـم وي رسـا ويـشته کـا**
**سـتن چـې کـږه شي ګنډنـه نـه کـا**
**بـاڼو چـې څـو ني پـر مـلا کړيـږي**
**هـومره پـه زړو کـې ننواتـه کـا**

د پايلې په توګه ويلی شو چې، د اسلم لوڼ شاعري د کلاسيکې دورې له سبکي ځانګړنو سره يو شمېر داسې نوې هنري ځانګړنې هم لري چې ښايي تر ځان پر وروسته هنري - ادبي نسل ئې د لا نورو نوښتونو رغوونکی اغېز پرې ايښی وي.

اخځليکونه:


۱. پښتانه شعرا، درېيم ټوک، پښتو ټولنه، ۱۳۴۲ هـ ل، ۸۵۸ مخ.
۲. کانديد اکاډميسين محمد صديق روهي، آيا حميد د هندي سبک پيرو و؟ عبدالحميد مومند ياد - د زلمي هېوادمل په زيار، د پښتو څېړنو بين المللي مرکز، کابل، ۱۳۶۶.
۳. سرمحقق زلمی هېوادمل، په هند کې د پښتو ژبې او ادبياتو د ايجاد او ودې پړاوونه، شوکت پرنټنګ پريس لاهور، ۱۳۷۳ هـ ش ۳۰۹ مخ.
۴. د اسلم لوڼ ديوان، ۸۵۸ مخ.
۵. طلا در مس، ۲۲۴ مخ.
۶. د اسلم لوڼ ديوان، ۵۸ مخ.

څېړنیار رفیع الله نیازی / کابل

# د اروابناد محمد اسلم "لوڼ" ژوند لیک

د اروابناد محمداسلم لوڼ د سلم تلین په مناسبت جوړ شوي سیمنار ته راغلو مشرانو، پوهانو، څېړونکو، خویندو او ورونو السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!

د سیمینار درنو ګډونوالو د دغه شخص د ژوند لیک په اړه د چا د سلم تلین په مناسبت، چې دا سیمنار جوړ شوی ډېر لږ معلومات شته، ما ئې په اړه له بېلابېلو منابعو څخه لږوډېر خواره واره معلومات راغونډ کړي، غواړم له تاسو سره ئې شریک کړم: "محمد اسلم لوڼ د دین محمد زوی د عبدالکریم لمسی په خټه لوڼ د کندهار له هغو شاعرانو څخه دئ، چې په پښتو او پارسو کې ئې شعر وایه او په دواړو ژبو کې مردف دیوانونه ځني پاته دي"[1].

د "پښتانه شعراء" په دریم ټوک کې د اروابناد لوڼ په اړه راغلي، چې نوموړی په ۱۲۵۴ هـ ق کال د کندهار ښار د بامیزو په کوڅه کې زېږېدلی او د ۷۸ کالو په عمر په ۱۳۳۲ هـ ق کال په همدې کندهار کې وفات شوی او په خپله پلرنۍ هدیره کې، چې د کندهار ښار د برو شابرج پر برابرې تر شاه ولې لږ پورته د لویې لارې لوېدیځ لور ته پرته ده دفن شوی دئ.

د "فرهنګ زبان و ادبیات پشتو" د لومړي ټوک په ۳۳ مخ کې کټ مټ د پښتانه شعراء په څېر د محمد اسلم لوڼ د زېږېدنې نېټه ۱۲۵۴ هـ ق او د وفات نېټه ئې هم ۱۳۳۲ هـ ق ښودل شوې، خو "د پښتو ادبیاتو تاریخ" په لومړي ټوک کې، چې د دویم خل له پاره په ۱۳۷۹ هـ ل کال د دانش خپرندویې ټولنې له لوري په پېښور کې چاپ شوی، د محمد اسلم لوڼ د مړینې نېټه د "پښتانه شعراء او فرهنګ زبان و ادبیات" له نېټې سره سمون نه خوري، "د پښتو ادبیاتو تاریخ" د دویم ټوک په ۲۲۶ مخ کې راغلي چې: "محمد اسلم لوڼ د دین محمد زوی د عبدالکریم لمسی په ۱۲۵۴ هـ ق کال په کندهار کې مړ دی او په خپله پلرنۍ هدیره کې ښخ دئ" یعنې د پیدایښت نېټه ئې د ده د مړینې نېټه ښودلې ده او د مړینې نېټه ئې ګردسره پکښې نه ده ذکر کړې، ښایي دا سهوالقلم او طباعتي تېروتنه وي، خو د دې له پاره، چې یاد اثر یعنې "د پښتو ادبیاتو تاریخ" دویم ټوک که څه هم د ښوونځیو د لسمو او یوولسمو ټولګیو له پاره لیکل شوی، خو نن سبا ترې په پوهنتوني زده کړو او په ځانګړې ډول د ادبیاتو په

پوهنځي کې د پښتو ادبیاتو د تاریخ په برخه کې ډېره استفاده کېږي، نو د محصلینو اړتیا ته په کتو سره که بیا چاپېږي، په کار ده، چې لومړی دا نېټه سمه او بیا چاپ شي.

د محمد اسلم "لوڼ" تخلص د پښتني قبیلو له ډلې لواڼي قبیلې ته منسوب دئ، چې په ټولیز ډول دا پښتني ټبر د لروبرو پښتنو په بېلابېلو سیمو او د پښتني قبیلو په اړه په لیکلو متونو کې د لوڼ، لوني، لواڼي، لوهاني، لوحاني او نوهاني په نومونو یاده شوی دئ. په "حیات افغاني" کې د لواڼي قبیلې په اړه وایي چې: "دوی هم لودي پښتانه دي او د نسب شجرې له لیدلو داسي جوتېږي، چې د اسماعیل زوی نوحان له خپلو دوو مېرمنو نه شپږ زامن درلودل، ویل کېږي، چې د ده اصلي نوم نوح وو، چې وروسته په نوحان یا لواڼ سره مشهور شو او د هغه اولاده د لواڼي په نامه سره یادېږي، خو پښتانه ئې په خپلو ورځنیو خبرو اترو کې د لوحاني، نوهاني یا لواڼي په نامه یادوي[٢]".

"پښتني قبیلې" څېړنیز اثر د "پښتانه د تاریخ په رڼا کې" تاریخي څېړنیز اثر په حواله د لواڼي قبیلې په اړه وایي: "د لواڼي له لومړۍ مېرمنې نه چې شیرۍ نومېده د مروت په نوم یو زوی نرۍ ته راغی، چې اولاده ئې د مروتو په نامه یادېږي. د مروتو د قبیلې ځینو خلکو ته سپین لواڼي هم وایي. لواڼي له خپلې دویمې مېرمنې نه، چې تورۍ نومېده پنځه زامن درلودل، چې اولاده ئې د تورو لواڼیو په نامه یادېږي[٣]".

ډېري پښتني قبیلې او خېلونه له خپلو پلرنیو مېشت ځایونو او ارو ټاټوبو څخه د بېلابېلو سیاسي، اقتصادي، فرهنګي، طبیعي او ټولنیزو لاملونو له امله بې ځایه شوي، نورو سیمو ته لېږدېدلي، لواڼي پښتني قبیله هم د افغانستان او سیمې بېلابېلو سیمو ته کډه شوې، د یادې قبیلې د اوسنیو مېشت ځایونو په اړه ویل کېږي، چې: "دوی اکثراً په شلګر، اندړ، قره باغ، کلات او کندهار کې په خواره واره ډول اوسېږي. د دې قبیلې ځیني خلک په بدخشان او د افغانستان په شمالي ولایتونو کې هم استوګنه لري. دوی اکثراً د ځمکو څښتنان دي او ډېر خلک ئې سوداګري کوي، نو ځکه شتمن دي، له دوی څخه ۵۰۰ کوره په شلګر او ۳۰۰ کوره په قره باغ کې استوګنه لري د دوی یو شمېر د بلوچستان په دکې او سبوۍ کې هم استوګنه لري[۴]".

مؤرخین، لواڼي، لودي پښتنو ته منسوبوي او لودي پښتنو لسګونه کلونه پر لوی هندوستان حکومتونه کړي، د دوی د واکمنۍ په پېر کې د دې قبیلې ډېر وګړي هندوستان ته تللي، د اوسني پاکستان په پنجاب او د هندوستان په بېلابېلو سیمو کې هم لواڼي مېشت دي، عبدالعلي غورغوشتي په اوردو ژبه په خپل لیکلي اثر "پشتون پشتو" کې وایي: "په لودي قبایلو کې تر ټولو غښتلې او شتمنه کورنۍ لوحاني ده، چې په شولګر، اندړ، کره باغ، کلات، غلزي او کندهار کې اباد دي او ځیني خلک ئې په بدخشان او قطغن کې هم شته، ډېری وګړي ئې کر کیله کوي او د ډېرو خلکو کار کسب ئې هم سوداګري ده، چې د همدغه کار و کسب له امله ئې ډېرو خلکو ته د دنیا په بېلابېلو سیمو کې د سیاحت زمینه هم مساعده شوې. د لوحاني له لومړۍ مېرمنې څخه یو زوی مروت وزېږېد، چې اوس ئې د

يوې ځانګړې قبيلې حيثيت پيدا کړی او له دويمې مېرمنې څخه ئې څلور بچي پيدا شوي، چې له هغوی هم بېلابېلې قبيلې جوړې شوې دي. د بهلول لودي په غوښتنه د دې قبيلې ډېر وګړي هندوستان ته ولاړل، د هغه په سلطنت کې په هندوستان کې د جاګيردارو په ډله کې د دوی ستره برخه وه او د دې قبيلې په مرسته په هندوستان کې لودي سلطنت پياوړی، مستحکم او پراخ شو[٥]".

له پورتني يادښت څخه په ځرګند ډول د هندوستان په ډېرو سيمو کې د لوانی قبيلې د وګړو د شتون خبره ځرګندېږي، څکه چې دوی په هندوستا ن کې د لودي سلطنت په ټينګښت او پياوړتيا کې رغنده رول درلود او له دې سره په څنګ کې "د پښتو ژبې صاحب ديوان شاعر دولت لوانی د دادو زوی، چې د روښانيانو په نهضت او د روښاني لارې د تبليغ په لاره کې د خليفه درجې ته رسېدلی وو، د هغو روښانيانو په ډله کې ولاړ سړی دی، چې هند ته تللي او هوري ئې ژوند کړی دی، دولت په رشيد آباد او دکن کې اوسېدلی دی، د دکن په هغه جنګ کې هم شامل وو، چې مېرزاخان روښاني پکښې وژل شوی وو او دولت هم په دې جنګ کې زخمي شوی وو[٦]".

په هر صورت محمد اسلم لوڼ د کندهار لوانی دی، په کندها رکې په داسې مهال زوکړی وو، چې دغلته "د کندهار ادبستان" جوړ، ادبي بنداړونه پيل شوي، فرهنګي فعاليتونه ګړندي شوي او د کندهار پر چاپېريال د ادب، شعر او شاعرۍ وږمو، چې لا دمخه د هوتکيانو د فرهنګپالو واکمنو په پېر کې د فرهنګي ولولو او هڅو له امله دغه سيمه معطره شوې وه لا پسې معطره کړه.

"د کندهار ادبستان د ديارلسمې هجري پېړۍ په دوهمه نيمايي کې جوړ شوی وو، دغه وخت سره له دې چې کندهار او د افغانستان نوري سيمې د سردارانو د اختلافاتو په وجه نا ارامې وې، خو په کندهار کې د فرهنګي فعاليتونو هڅه هم موجوده وه او سردار مهردل خان مشرقي او د هغه وخت نورو شاعرانو غونډې سره درلودې: ادبي مجالس ئې دايرول او د کندهار ادبستان ئې تاسيس کړی وو[٧]".

د کندهار په ادبستان کې مېرزاحنان بارکزی، صديق اخوندزاده هوتک، سردار مهردل خان مشرقي او ځيني نور اديبان روزل شوي او ستر شوي ول، نو له همدغه امله ويلای شو ، چې محمد اسلم لوڼ د دغو يادو شاعرانو همعصره شاعر وو، ان ښايي چې ددغه ادبستان له سرلارو سره به ئې راشه درشه او ناسته پاسته هم کړې وي. د کندهار د هغه مهال په دغه ډول فرهنګي چاپېريال کې محمد اسلم لوڼ زېږېدلی، نو څکه ئې "له کوچنيوالي څخه شاعرانه ذوق او د علم و سلوک هڅه درلوده، چې لوی شو پلرني کسب و کار (سوداګري) ته ئې توجه و نه کړه، د يوې بډايي او مړې کورنۍ نازولی زوی د ډېرو ارزوګانو او توقعاتو خلاف د فقر و سلوک او علم و ادب لمن داسې ټينګه کړه، چې د ژوند تر پايه ئې پرېنښوده او تر مرګه ئې بې کتاب او قلمه بل ملګری غوره نه کړ، عمر ئې په تجرد او تجريد کې تېر شو، بې مطالعې، شعر ويلو، رياضت او تفکره ئې بل کار نه درلود، په عرفان او تصوف کې دومره ډوب وو، چې کله کله د سکر (جذب او

استغراق) حال هم وربېښېده او عشق ئې پر عقل برى موند[۸]".

د شته وو اسنادو له مخې محمد اسلم لوڼ په پښتو او دري دواړو ژبو کې د اشعارو ديوانونه لري، د پښتو ديوان خطي نسخه ئې چې تر دې دمه نه ده چاپ شوې د افغانستان د علومو اکاډيمۍ په کتابتون کې خوندي ده، چې شپږ نيم زره بيتونه لري او پارسي ديوان ئې هم درې زره بيتونه لري او له دې سره په څنګ کې د "پښتو زاړه لغات" په نامه يو بل اثر هم لري.

"د دې سالک شاعر اشعار ټول عشقي او تصوفي رنګ لري، د ابتکار او نازکخيالۍ خوا ته ئې هڅه زياته ده، په پښتو شاعرۍ کې د حميد ماشوخېل د سبک يو وتلی او تکړه استاد دئ، په کلام کې ئې بديعي صنايع دومره زيات دي، چې که ووايو يو بيت ئې هم له دغو محسناتو څخه تش نه دئ مبالغه به نه وي. د تخيل جګوالی، د قريحې جودت او جدت پسندي ئې د ستاينې وړ ده، په وينا کې ئې له معنوي تعقيد سره يو ځر ګند عذوبت او خوږوالی ليده شي، په شعر کې ئې د عشق سوزو ګداز له ورايه ښکاري[۹]".

په "فرهنګ زبان و ادبيات پشتو" کې د محمد اسلم لوڼ د شاعرۍ په اړه راغلي:

"اسلم لوڼ از پيروان مکتب ادبی حميد مومند و سخنوريست که در سبک اشعار سوزناک عشقی و ليريک و بعضاً تصوفی سروده وی به زبانهای پښتو و پارسی شعر ګفته، دواوين پښتو و پارسی وی در دست است[۱۰]".

اروانباد محمد اسلم لوڼ هم لکه د پښتو ژبې د څينو نورو ليکوالو او شاعرانو په ځېر هېر شوی، د شعرونو ديوان ئې لا هم د خطي نسخې په څو کاغذونو پورې منحصر پاته شوی، د ده له خيال او فکر نه پښتو ادب تر دې دمه محروم دئ، هيلې، ارمانونه او د زړه سوز و ګداز ئې تر نورو پښتنو و نه رسېد، دغه پښتون شاعر په نوره پښتنه سميه خو لا څه کړې، چې ښايي د خپلې کورنۍ له څو تنو غړو پرته به ئې په کندهار کې هم ډېر خلک نه پېژني، د افغانستان د جنګ ځپلو حالاتو او زړه بوږنوونکو شېبو له ناورين څخه ئې تر دې دمه هم د ديوان قلمي نسخه له نېکه مرغه د افغانستان د علومو اکاډيمۍ په کتابتون کې خوندي پاته شوې، د وخت په تېرېدو ښايي د پښتو ادب دغه پانګه خدا ی مه کړه له لاسه ووځي، نو زه وړانديز کوم، چې لومړی خو دې د افغانستان د علومو اکاډيمۍ د ژبو او ادبياتو علمي مرکز دغلته يوه علمي غړي ته د يوې علمي پروژې په توګه دغه خطي نسخه وسپاري، چې د متنپوهنې له ميتودولوژۍ سره سم ئې تدوين کړي، سريزه او تعليقات پرې وکښي او چاپ ته ئې چمتو کړي او که داسې نه کېږي، نو نوري کولتوري او فرهنګي ټولنې او په ځانګړي ډول کندهار مېشتي فرهنګي ټولنې، چې تر دې دمه ئې د پښتو ادب په غنا کې د زړه له کومې او د ستايلو وړ ونډه اخيستې، دې کار ته هم ملا وتړي، چې دا ديوان چاپ شي او د ضايع کېدو څخه ئې ونيول شي. په همدې هيله، زه خپلې خبرې د محمد اسلم لوڼ د ديوان په څو بيتونو سره پای ته رسوم:

**ستا له لاسه تل جفا سترګه د لمر وري**
**د شفق په ژړا وينې هر سحر وري**

**معشوقې دي په عالم کې شپې رسوا کړې**
**سپوږمۍ شمعه ستا د حسن در په در وړي**
**هغه ستا د خولې خبري دي دلبره!**
**چې په خولو کې د خوبانو ګل شکر وړي**
**له بانو دي د مینو بنه ولاړه**
**چې و هر زړه ته تېره د عشق نشتر وړي**
**زما د خیال د مرغه خاله ده سر بره**
**ستا د عشق پر کنګرو باندې شهپر وړي**
**چې تاجداره دي په مینه سي محتاجه**
**ستا له کبره به " اسلم " خاوري پر سر وړي**[11]

**اخځلیکونه:**


۱. پښتانه شعراء، دریم ټوک، پښتو ټولنه، ۱۳۴۲ هـ ل، ۸۵۵ مخ.
۲. محمد حیات خان، حیات افغاني، پښتو ژباړه، (فرهاد ظریفي او عبداللطیف طالبي) کابل، د قومونو او قبایلو چارو وزارت، ۱۳۶۲ هـ ل، ۴۳۵-۴۳۴ مخونه.
۳. یاد طالبي، عبداللطیف: پښتنې قبیلې، دریم چاپ، دانش خپرندویه ټولنه پېښور، ۱۳۸۹ هـ ل، ۲۲۷-۲۲۸ ۴ مخونه.
۴. یاد طالبي، عبداللطیف: پښتنې قبیلې، ۲۲۷-۲۲۸ مخونه.
۵. غورغوشتی، عبدالعلي: پشتون پشتو، حجره پبلېکېشنز ۱۴ جاپان مېنشن پریډي سټریټ صدر کراچي، ۲۰۰۵ م، ۱۲۴-۱۲۳ مخونه.
٦. هېوادمل، زلمی: د پښتو ادبیاتو تاریخ (لومړی ټوک)، دویم چاپ، دانش خپرندویه ټولنه پېښور، ۱۳۸۹ هـ ل، ۱۰۴ مخ.
۷. هېوادمل، زلمی: د پښتو ادبیاتو تاریخ (لومړی ټوک)، ۲۲۴ مخ.
۸. پښتانه شعراء، دریم ټوک، ۸۵۵ مخ.
۹. پښتانه شعراء، دریم ټوک، ۸۵۶ مخ.
۱۰. هېوادمل، زلمی: فرهنګ زبان و ادبیات پښتو، جلد اول، وزارت معارف، ریاست تالیف و ترجمه، ۱۳۵۶ هـ ل، ص ۳۳.
۱۱. پښتانه شعراء، دریم ټوک، ۸۵۸ مخ.


د ۷۵ مخ پاته ...

**(۲)**

**ستا له لاسه تل جفا ستړګه د لمر وړي**
**د شفق په ژړا ویني هر سحر وړي**

**معشوقې دي په عالم کې شپې رسوا کړې**
**سپوږمۍ شمعه ستا د حسن در پر در وړي**
**هغه ستا د خولې خبري دي دلبره**
**چې په خولو کې د خوبانو ګل شکر وړي**
**له بانو دي د مینو بنه ولاړه**
**چې و هر زړه ته تیره د عشق نشتر وړي**
**زما د خیال د مرغه خاله ده سر بره**
**ستا د عشق پر کنګرو باندې شهپر وړي**

**چې تاجداره دي په مینه شي محتاجه**
**ستا له کبره به اسلم خاوري پر سر وړي**[1]

---

[1] - د اسلم لوڼ قلمي دېوان، علومو اکاډمي، ریفرنس څانګه.

ليکوالان: خالد اقبال ياسر او محمد ارشد رازي



مترجم: نثاراحمد آريا



# نوبل جايزه وړونکي اديبان

# فرانسوی شاعر سلې پروډوم

(دريمه برخه)

کله چي په ۱۹۰۱م کال کي فرانسوي شاعر سلې پروډوم (Sully Prudhomme) ته نوبل جايزه ورکړه سوه، نو پر دې پرېکړي خورا ډېر انتقادونه وسول. د منتقدينو لويه نيوکه دا وه، چي يو خو له ۱۸۸۸م کال وروسته د پروډوم کوم خاص اثر چاپ سوی نه دئ او بل اوس مهال سلې پروډوم نه په فرانسه کي خاص لوستونکي لري او نه هم له فرانسې څخه دباندي.

د هغه په ابتدايي شاعري کي د نړۍ په اړه تراژيديک خيال ليدل کېږي، په داسي حال کي چي وروستۍ شاعري ئې پر داسي يکنواخته او شخصي تخنيک ولاړه ده، چي د موضوع له پلوه د هغه مهال د رومانيزم او رزميزم په وړاندي غبرگون پکښي ليدل کېږي.

سلې پروډوم د ۱۸۳۹م کال د مارچ د مياشتي پر ۱٦ نېټه په پاريس کي وزوکېد. د هغه پلار د مالي تنگلاسۍ له امله له کوزدې لس کاله وروسته واده وکړ او د هغه له زوکړې دوه کاله وروسته مړ سو. له دې پېښې وروسته د هغه مور د خپل ورور کره کډه سوه او هلته ئې د سلې په روزنه پيل وکړ. سلې اصلاً د هغه د پلار لقب وو، خو هغه له خپل

نامه سره ملگری کړ. هغه د ښوونځي له زمانې څخه له کلاسیک ادب او ریاضیاتو سره علاقه لرله. د سترګو د ناروغۍ له امله نې و نه سوای کولای، چې انجینري ووایي، له همدې امله هغه فکر وکړ، چې په یوه کلیسا (ډومینکن آرډر) کې شامل سي، خو له (بونا پارټ لایسي) ښوونځي څخه تر فراغت وروسته هغه په یوه فارم کې کار شروع کړ. د دې دندې تر څنګ هغه د حقوقو مطالعه هم کول.

له یوې ناکامې مینې وروسته هغه ټول ژوند یوازې تېر کړ. د شپې له خوا نې د فلسفې د پوهنځي تر څنګ شاعري هم کوله. نامتو شاعر لیکانټ دي لیسل (Leconte de Lisle) که څه هم په دې پوهېدی، چې د هغه د شاګرد (سلي پروډوم شاعري) د کلاسیک هنر پر پامیسیئن (Pamissian) معیارونو باندې برابره نه ده، بلکې باطنیت ته نې ډېره پاملرنه پکښې کړې ده، خو پر دې سربېره هغه د سلي پروډوم لومړنۍ شاعرانه هڅې وستایلې. په شپږویشت کلنۍ کې د هغه لومړۍ شعري مجموعه (Stances et Poems) چاپ سوه. د هغه دغه له غم او درد څخه ډک نظمونه خورا وستایل سول. په دې نظمونو کې د سلي نامتو نظم (The Broken Vase) هم شامل وو. په ۱۸۸۶م کال کې د شعري منتخباتو یوه ګډه مجموعه (Le Parnasse Contemporain) چاپ سوه. په دې مجموعه کې د سلي نظمونه هم شامل ؤل. بیا د هغه دوې شعري مجموعې (Les Ecurias D'Augias) او (Croquis Italens) په ترتیب سره په ۱۸۶۶م او ۱۸۶۸م کې چاپ سوې. په ۱۸۶۹م کې د هغه یوه بله مجموعه (Les Solitudes) هم خپره سوه.

سلي غوښتل چې خپله شاعري د کلاسیک هنر پر معیارونو برابره کړي. په دې برخه کې هغه د ایټالوي شاعر او فیلسوف لیو لوکریټیئس (leo lucretius) پیرو وو. هغه د لیو لوکریټینس د (On the Nature of Things) د لومړي ټوک منظومه ترجمه هم وکړه او له یوې ښې فاضلانه مقدمې سره نې چاپ کړه. لیو کریټیئس د ناصحانه شاعرۍ پلوی وو.



همدارنگه نوموړي په دې لار کې د اپیي کیوري مکتب پیرویتوب هم لازم باله. دغه فکري مکتب انسان ته لارښوونه کوي. چې څېل ژوند د رښتینولۍ پر بنسټ تېر کي. همدارنگه دغه مکتب تر ټولو لویه شتمني دا گڼي، چې انسان په ډېر لږ څه باندي قناعت وکړي، څکه د ډېري لږي کیندني حق الزحمه ډېره لږ وي. له دې وروسته سلې پرودوم دې ته میلان پیدا کړ، چې خپل فلسفیانه افکار بیان کړي. البته دا بیا جلا خبره ده، چې په شاعري کې د هغه په افکارو پوهېدل لا ستونزمن کېږي. د هغه د لیکلو سبک دونده تدریسانه دئ. چې هیڅکله د خپلو افکارو د تفهیم له پاره د لوستونکي پر ذهن باور نه کوي او خپله د هغو په تشریح باندي پیل کوي.

کله چې د فرانسې او پروشیا تر منځ جگړه ونښته نو سلې پرودوم په ملېشه جنگیالیو کي نوم لیکنه وکړه. په ۱۸۷۰م کي د هغه (Impressiens dela Guerre) نومی کتاب چاپ سو. په همدې کال د هغه مور او ماما هم مړه سول. له دې امله پر هغه عصبي حمله راغله او د وجود لاندي برخه ئې تقریباً فلج سوه. هغه خپل پاته ټول ژوند په همدې معیوبیت کي تېر کی. په ۱۸۷۵م کي ئې (Les Vaines Tendressess) نومي مجموعه چاپ سوه او په ۱۸۷۸م کي ئې د (La Justice) په نامه مجموعه خپره سوه. همدا رنگه په ۱۸۸۱ م کي نوموړی د (فرنچ اکاډمی) د غړي په توگه انتخاب سو.

د اروپا د معاصرو ادبیاتو په کولمبیایي قاموس (۱۹۸۰ د چاپ کال) کي د نوموړي په اړه کنبل سوي دي: "هغه نه د وکټر هوگو په ډول د آپټمیزم (خوشبینانه فکر کول) پلوی وو او نه هم د لي کانټ دي لیسل (Leconte de lisle) غوندي د نهیلیزم پلوی. هغه د نزدې یوه نسل راهیسي په نهیلزم کي لوېدلې فرانسوي شاعري راپورته کړه او د خپل دې باور کلکه ادعا ئې وکړه، چې د خوښۍ منزل ته تللې لار د کړاو، قرباني او میني له پړاوونو څخه تېرېږي".

په وروستیو کلونو کي سلې یو څلور زره مصرعیز حماسي نظم (Le Bonheur) وکیښ. دغه نظم ته هغه خپل ساینسي فلسفیانه نظم وایه. پاته ژوند هغه د شاعرۍ پر فلسفه تېر کړ. په ۱۹۰۰م کال هغه د (Le Testamente Poetique) په نامه یو کتاب خپور کی. په دغه کتاب کي هغه د آزاد نظم او سمبولیزم په اړه خپل انتقادونه وړاندي کړل. همدارنگه په ۱۹۰۶م کي هغه یو بل کتاب (La Psychologie de Libre) چاپ کی. په دې کتاب کي هغه دې نتیجې ته ورسېد، چې د اختیار تصور د انسان په فطرت کي موجود دئ، څکه نو په سم ډول باید استعمال سي. د ژوند په وروستیو کلونو کي هغه د فلج له لاسه ولوېد. کله چې هغه نوبل جایزه یووړه، نو په جایزه کي ورکړل سوي پیسې ئې د فرانسوي لیکوالو ټولني ته ورکړې. تر څو هغوی په دې پیسو د نویو راټوکېدلو شاعرانو لومړنیو مجموعو ته د چاپ لومړي امکانات برابر کي.

پای

# یو بل نومورکی شاعر



لیکوال:
بشیراحمد بشارت

که څه هم د نومورکو شاعرانو او لیکوالانو د پیدایښت لړۍ له ډېره وخته را روانه ده، خو دې حاصل خیزې سیمې په هر وخت او زمان کې داسې د قلم خاوندان ټوکولي دي چې په اکثرو زمونږ د تاریخ لمن ځلانده ده. اما بعضې د ټوکېدو سره سمدستي خزان سوي دي، چې د نومو او د کلام د نمونو سره ئې ناآشنا یو.

یو هم د دې لړۍ څخه شهید عبدالکریم ثاني دئ. د پیدایښت دقیقه نېټه ئې نه ده معلومه، د پنجوایي اولسوالۍ د مرکز په لوړو کورو کې استوګن وو. زده کړې ئې د کابل حربي ښوونځي تر لسم ټولګي پوري کړي دي، خو د مریضۍ له اسیته څني پاته سوي دي. د هغه وخت مروجې دیني زده کړې ئې هم کړې وې، چې په دري او پښتو ژبو ئې ښه لیک او لوست کولای سوای.

د پنجوایي په بازار کې د بزازۍ دوکان درلودی چې د دې کسب تر څنګ د ښکار هم ډېر شوقي وو.

د خدای بخښلي عبدالکریم ثاني د دوهم زوی محمدکامل څخه یوه د شعرو سل ورقیزه کتابچه ده. د ده په وینا چې دغسې درې کتابچې ئې ډکې د شعرونو درلودې چې فعلاً دغه یوه پاته ده. د محمدکامل په وینا چې نومړي هم غزل

ليکل او هم ئې په مقامو پوهېدی او هم به ئې کله کله زمزمه کول. څکه چي په کتابچه کې د هري غزلې و سر ته د موسيقۍ د يوه مقام نوم هم ليکل سوی دئ.

دغه لاندي غزل ئې تر (۱۳۳۰هـ ش) کال مخکي د پيلومي په مقام کي کښلې ده:

**راســه دلــداره بېلتــون دي زور ســو**
**ژړ مــي بــدن دئ د غمــه تــور ســو**
**ژاړمــــه ژاړم وصـــــال دي غــــواړم**
**حــيران و تـــا تـــه معـــشوقو ولاړم**
**خپل سر به لغاړم زړه مي په اور سو**
**ژړ مــي بــدن دئ د غمــه تــور ســو**

**دغه مي حال دئ زړه مي ملال دئ**
**معلوم و تا ته خپل بخت اقبال دئ**
**دغه مي سوال دئ چي درته خپور سو**
**ژړ مــي بــدن دئ د غمــه تــور ســو**

**يمــه بېتابــه گـــرخم کبابـــه**
**د ډېــره درده يــم پــه عذابــه**
**د ورک نقابــه عاشــق رنځــور ســو**
**ژړ مــي بــدن دئ د غمــه تــور ســو**

**زړه مي سوزان دئ تل په گريان دئ**
**چــوي د درده ډک پــه ارمــان دئ**
**دوک مي په ځان دئ پر ځای ظهور سو**
**ژړ مــي بــدن دئ د غمــه تــور ســو**

**قلـم قلـم يـم عـشق کـي بـرهم يـم**
**عبـدالکريم ثـاني ورتــه محکـم يـم**
**مـدام پـه نـم يـم عمـر ضرور سـو**
**ژړ مــي بــدن دئ د غمــه تــور ســو**

او همدارنگه ئې لاندي غزل د جوگ په مقام کي ليکلې ده:

**ستا بې ديدنه زما نسته عقلو هوشه**
**پروت يم بې هوشه**
**نه وينم سيال ستا د جمال پر کل جهان معشوقو**
**کرسی نشين يې بې له عيبه زرين پوشه**
**ستا بې وصاله پر دنيا بله سودا نه لرم**
**مـا غريـب مـه کـه د وصـاله فراموشـه**
**نه لري تـا رنگه وفا ټول کـاملان پـر دنيا**
**وکـه نظـر پـر مـا غـلام حلقـه بگوشـه**
**عبدالکريم ثاني همېش کوي دا رنگه ويل**
**خـواړه بيتونـه جـوړوم د زړه لـه جوشـه**

که پورته شعرونو ته وکتل سي نو سړی ويلای سي چي اولسي رنگ لري او د خپل وخت موضوعات پکښې پېچلي دي. د شعر ژبه ئې روانه او د بې ځايه لغاتو د راوړولو څخه ډېره پکښې سوې ده. که څه هم عبدالکريم ثاني ديني علوم لوستي وه خو پر شعر ئې تاثيرات کم ليدل کېږي.

د محمدکامل په وينا چي وايي زه ډېر کوچنی وم ده به شعرونه جوړول او بيا به ئې زمزمه کول. د نامتو سندرغاړي استاد محمدنور سره به هم کله کله ملگری وو. همدارنگه دی زياتوي چي د عسکرۍ په دوران کي د هغه وخت د پاچا ظاهرشاه په حضور کي ئې ملي ترانه ويلې چي د هغه له خوا په نقدي جايزه هم نازول سوی دئ او د سندريز مجلس ملگري ئې سيد اسلم جان آغا د پنجوايي، د هغه زوی محمدآغا، حاجي گل مير او محمدعالم آغا ول.

شهادت ئې تقريباً د (۱۳۵۹هـ ش) کال په اوايلو کي سوی دئ. د سپېروان د شيخ قلندر بابا په زيارت کي ښخ دئ.

د خدای بخښلي ثاني څخه پنځه زان او درې لوڼي پاته دي.

پای

څېړندوی عبدالرحمن حبیب زوی

# د اسلم لوڼ دېوان

**په هر بیت سره مي سوځي خولې د خلکو**
**دا سکروټې به تر کوم خلق نهان کېښوزي**
"اسلم لوڼ"

اسلم لوڼ د سپوږمیزي دوولسمې پېړۍ په نیمایي کې د کندهار په بامیزو کوځه کې زېږېدلی دئ او د ۷۸ کالو په عمر په ۱۳۳۲سپوږمیز کال کې مړ شوی دی. لوڼ د خپلو ګڼورو اثارو «پارسي ژبې دیوان، د پښتو ژبې زاړه لغات» سر بیره د پښتو اشعارو یو غني دیوان یا شعري ټولګوند هم لري، چې دلته به ئې په لنډه توګه دروپېژنو.

د نوموړي د دیوان قلمي نسخه د افغانستان د علومو اکاډمۍ د ریفرنس په ځانګه په پرله پسې ۱۱۹۱۵نمبر او په ۲۲۶ځانګړي نمبر کي ثبت دي. دېوان ټولټال ۳۹۸مخونه لري.

د اسلم لوڼ د دېوان اشعار په تور رنګ په نیي قلم کښل شوي او د مخونو شمېره یې په شین رنګ نیي قلم لیکل شوې ده.

د یاد دېوان په هر مخ کي دوې غزلې کښل شوي؛ او شاوخوا ۱۳۸غزلې ئې په حاشیو کې راغلي دي، هر غزل ئې التزاماً اووه بیتونه لري او د ټول کلیات د بیتونو شمېر ئې شپږنیم زره بیته کېږي؛ چې له ۵۸۵۹ بیتونو څخه ئې ۸۳۸ غزلې جوړي شوي او پاته بیتونه ئې مخمس، ترجیع بند، ترکیب بند او مربعات دي[1].

د اسلم لوڼ دېوان اووه برخي لري، چي د الف په ردیف سره پیلېږي، د لومړۍ برخي په اول سر کي داسې شعرونه راغلي، چي له الف ردیف سره مطابقت نه ښایي، بلکي هغه اشعار دي،چې په «ي» باندې پای مومي او تر هغه وروسته بیا د الف ردیف پیلېږي، زما په اند چي دا د لومړنۍ برخې وروستنۍ برخه وي، خو بشپړه نیمګړې ده، په دې توګه که چیري دا مخ یوه برخه وګڼو، نو یاد دېوان اته برخي لري، همدا ډول د دېوان وروستنۍ برخه هم نیمګړې ده او تر «ش» پورې ئې شعرونه نشته دي.

- **د اسلم لوڼ د دېوان لیکدود:**

د اسلم لوڼ د شعر ژبه په لیکنۍ بڼه خانته ځانګړي جوړښتونه لري، د بېلګې په توګه نوموړی «په او زړه» یو ځای کارولي؛ لکه په دې بیت کي:

**سر مي له عقل د عشق مه خلاص وه(خلوصوه)**
**مـــه رازه راز پزړه (په زړه) کي ســـتا بیوضا**
دېوان ۱۱۳مخ

دلته ئې خلاص اصلي فعل له کومکي فعل

---

[1] - عبدالشکور رشاد : پښتانه شعرا، درېیم ټوک، پښتو ټولنه ۱۳۴۲ کال، ۸۵۶ دولتي مطبعه. مخ.

ځخه جلا لیکلی دئ. همدا ډول ئې د نرمه (ې) له پاره د عربي له زیر( ِ ) ځخه کار اخیستی لکه:

**په هر پاڼې (پاڼي) پور (ې) زر ځالي بلبلي**
**وازو خولو هزار داستان سرنده کښنوست**

دیوان ۱۷۷مخ.

په پورته بیت کې ئې د (ڼ) توری له ن او ړ ځخه ګډ جوړ کړی، چې دا مهال دا دود له منځه تللی دئ.

اسلم لکه ځنګه چې د نرمي (ې) له پاره د عربي زیر کارولې؛ همدا شان ئې (اَ) لکه «زه، ته، مه» په زور ( َ ) سره ښښړوي. لکه د نوموړي د کلام دا نمونه:

**د مخلوق د مینې په حسن کړې ممتاز (ه)**
**تمنـــا تولـــه بـــولم زه تـــاز (ه)**
**سروه قـــده لالـــه بـــه ګلرخـــسار (ه)**
**وازه خولـــه د خلـــد د بـــاغ هـــزار اواز(ه)**
**بې له تا مي وړی خیال ارام په خوب کي**
**لکه زړه چـي روح لـري په پـټ همـراز(ه)**
**تـر ابـده خـزان مـه سـې حـسن داره**
**د « اسـلم» ساه ډیـر لـه تـا سره ساز(ه)**

لوې د پښتو ادبیاتو د منځنۍ دورې شاعرانو په څېر تصوفي لاره غوره ګڼلې او په شعر کې ئې تصوفي ازانګې له ورایه تر سترګو کېږي:

**یوارې لـیده ښکاره وکه د زخـمي بې قــرار**
**«اسلم» بسمل غوندسترګي د غم د تیغ په تیش**

دیوان :۳۹۸مخ

یا

**سرګـــردان یـــم پـــه تاپـــسي ارام را**
**لـه وحـشت د وصـال پـه بنـد کـي دام را**
**ستا لـه مهره نقـد و مـا تـه فیض عـام را**
**پـه هـر کـار کـي بې لـه پـوره پـوره کـام را**
**مـاتوي چـي تـنـده ماتـه لـه زړه جـام را**
**پیمانـه یـخ پخـوا لـه خـم خـام را**
**ستا وصال وي مي روز سي «اسلم»وای**
**چـي مـي برخـه پیـروزي سي اسـلم وای**

دیوان :۲۸مخ

دا یې هم یوه مینه ییز شعر:

**خوب پر ما حرام دی ستا جور و جفاوي دي**
**روڼـي سـترګي ګـورم بېـره ده بـلاوي دي**
**ستا په عشق کي رنځور یم عمر په ضرور یم**
**سـوی د تنـور یـم سـخته نـارواوي دي**
**پرېـږده دا جفـاوي اوس وکـه وفـاوي**
**ستا دي سي دوعـاوي مـا کـړي ښېراوي دي**
**غـم د طالبـانو واخلـه لـه چـشمانو**
**سـتا د عاشـقانو لـور پـه لـور ژړاوي دي**
**شوخ عنوان دی یاره که یې «اسلم » افګاره**
**وای د خـدای دپـاره دا څـه راز اداوي دي**

دیوان :۱۶۸مخ

اسلم د شعر او شاعرۍ په اړه داسې وایي:

**چي د زړه ویني په خوله خوري شاعري ده**
**ډک له اوره لړمون سـیمه کـړي سـعیر**

دیوان : ۱۹۴مخ

د نوموړي له دیوان ځخه د شعر دوې بېلګي:

(۱)

**وسـوم وسـوم آه و اه افـسوس افـسوس**
**په اور داغ سوم بې ګناه افسوس افسوس**
**د هجران لـه سخته بـاره بـه سـپک نـشم**
**سو تر کوه لاندي مي کاه افسوس افسوس**
**په هیڅ وخت مي د ښو بدو تمیز نه کړ**
**سو هر ګاه پر ما بیګاه افسوس افسوس**
**سرد سـانګي لـه غـروره ځـي پـه مځکـه**
**اګاه اوسي ځاه دی جاه افسوس افسوس**
**نور په ٦٨ مخ کي**

# اغیزناکه مذاکره

## د مذاکرې خاصي نقطې وپېژنئ
## دوه اړخیزه ګټونکي حالتونه وپېژنئ
## اجنډا جوړول او د مقابل لور اجنډاوو ته جوابونه

لیکوال: کین لاسن، ایم. اې، ای ډي. ایم
ژباړه: **سعید لودین/ کاناډا**
(لومړۍ برخه)



### مذاکره څه شي ده؟

#### جریانونه، هدفونه او نتیجې

مذاکره هغه جریان دئ چي هدف ئې جوړجاړی زېږول وي. په دې پوري اړه نه لري چي ته د کور د خرڅلاو مذاکره کوې، د دوو غټو کمپنیانو د یو ځای کېدلو او یا د طلاق مذاکره، ځکه د ټولو یو ډول اصول وي.

دا هم د یوې کامیابي مذاکرې څو خاص خاصیتونه:

۱. مذاکره یو جریان دئ نه یوه نتیجه. مذاکره کوونکي خواوي اکثره وختونه په دې پر خپل ځای ټینګ ولاړ وي چي و دوی ته داسي ایسي چي ژر و یوه هدف ته نه سره رسېږي او یا څه چي په لاس ورځي کافي اندازه کامیابي ورته نه وي. دا کار له چا څخه لار ورکه کوي. ماهر مذاکره کوونکي د یوې مذاکرې و جریان ته په داسي سترګه ګوري چي څنګه ژر تر ژره و یوې ګډي موافقې ته سره ورسېږي.

۲. په یوې ماهرانه مذاکره سوي موافقې کي د دواړو خواوو رضائیت موجود وي یعني دواړي خواوي ګټونکي وي. خو دا هم ورسره تړلې ده چي قوي خوا دې پر کمزوري خوا باندي خپل زور ازمایي وکړي او دا کار بیا د دې باعث سي چي کمزوره خوا خوابدې سي او له هغو شرایطو څخه چي

دواړي خواوي جوړجاړي ته سره پر رسېدلي ول پرشا سي.

۳. پر هر څه مذاکره کېدلای سي دا یعنی ټول هغه شرایط چي و یوې امکاني جوړجاړي ته ضروري وي، هغه ځای چي جوړجاړی پکښي کېږي او یا حتی هغه خلک چي په مذاکره کي برخه اخلي بدلېدلای او رابدلېدلای سي. هیڅکله هم د مقابل لور پر دې خبره چي وایي: "پر پلانکي شي جوړه نه سي کېدلای" باور و نه کړئ.

۴. امتیاز یا تېرېدنه د مذاکرې پیسه ده. که تاسو په هغه څه راضي سئ چي د مقابلي خوا درته وړاندي سوي وي نو تاسو خو به ځان له سردردی، څخه ژغورلي وي خو یقیناً چي ګټوره مذاکره به مو نه وي کړې. تل د مقابل لور له خوا و امتیاز ته سترګي پر لاره اوسی او په مقابل کي ئې امتیاز ورکولو ته هم اماده اوسئ او یا لږ تر لږه داسي وایسوئ چي و مقابل لور ته امتیاز ورکوی. پر لویو موضوعاتو و جوړجاړي ته د رسېدلو له پاره و کوچنیو لانجو ته غاړه ایښوول تل په ګټه وي.

**دوه اړخیزه رضائیت هدف ټاکل:**

اکثره وخت په مذاکرو کي داسي ګومان کېږي چي په مابین کي یو ټاکلی سایز ګردی، ډوډی، پرته ده او هغه باید سره تقسیم سي. په دې سره دواړي خواوي ښکر په ښکر سي او هري خوا چي ډېره حصه واخیستل، هغه به ګټونکې وي خو ماهره مذاکره کوونکي و لانجو ته په داسي سترګه نه ګوري.

۱. د ډوډی، سایز معلوم نه دئ او دا هم ممکنه ده چي دواړي خواوي دي د خاصو برخو په ګډه خاوندان واوسي خو په شرط د دې چي دا کار دواړي خواوي اوږدمهالي ګډو (مشترکو) ګټو ته وهڅوي.

۲. که غواړئ چي دا تر لاسه کړی، نو باید ګډي (مشترکي) ګټي ځان ته معلومي کړی. خپلي ګټي، د مقابل لور ګټي او هغه ځای چي د دواړو خواوو ګټي سره ګډېږي ځان ته معلومول د هري مذاکرې د پیل لومړی او خاص شرط دئ.

دا په هر حالت کي کارنده تمامېږي، دا که د تنخوا د ډېرولو، د لوړ پوست د تر لاسه کولو او یا د لویو کمپنیو د یو ځای کولو تر مذاکرې وي. په ټولو کي اغېزمنه تمامېږي.

اصلي هدف دلته دا دئ چي دواړي خواوي باید د ګډو ګټو پیدا کولو ته کار وکړي. که څه هم پیدا کول به ئې اسانه نه وي. په هر حال که تاسو په ښکاره ډول مقابل لور ته دا روښانه کړی چي هیله مو د ګډو ګټو پیدا کول دي نو دا کار به ستاسو موقف د مذاکرې پر بحث ډېر پیاوړی کړي.

په دې کار سره به تاسو مقابل لور ته دا ثابته کړی چي نه غواړئ یوه خوا دي پر بلي خوا باندي زوروره او ګټوره سي.

مثال: یو دوکاندار غواړي چي خپل د

عاید ګټه ډېره کړي نو شیان پر ګراکانو باندي په ګرانه بیه خرڅوي. په نتیجه کي ګراکان له دوکان څخه بندېږي او حتی نور لا هم له ورتګ څخه منع کوي. په دې صورت کي دواړي خواوي بایلونکي دي. خو که داغه دوکاندار پر خپلو ګراکانو باندي په مناسبه بیه شیان خرڅ کړي نو لنډ مهاله ګټه خو به ئې لږ وي مګر دوه اړخیزه ګټه به اوږدمهاله فایده او د ګراکانو ډېروالی په لاس ورکړي. دا ممکنه ده چي دواړي خواوي دي ګټونکي وي، که څه هم ګټي ئې یو د بل په مقابل کي وي.

**ته څنګه مذاکره کوونکی یې؟**

دا ډېره مهمه ده چي ځوک په دې پوه سي چي ټول مذاکره کوونکي انسانان دي، ماشینان او کمپیوټران نه دي. خو اکثره وخت خلک و دې ته په ډېره عادي سترګه ګوري. د دې معنا دا ده چي د مذاکره کولو طرزونه دونه زیات دي لکه څومره چي په نړۍ کي خلک دي. هغوی پر ډېرو پراخو کټګوریو وېشل کېږي او تاسي د لاندي سوالونو په جوابولو سره ځان ته دا معلومولای سی چي تاسي په کومه کټګوري پور اړه لرئ کومه یوه تاسو ته مناسبه ده.

۱. ایا ته په هر قیمت چي وي بری غواړې؟
۲. ایا ته امتیاز غوښتونکی یې؟
۳. ته چي پر یو ځای ودرېږې بیا له خپل ځای څخه د ایسته کېدلو نوم لا نه اخلې؟
۴. ایا تا ته چي څه وویل سي هغوی ټولو ته تل د شک په سترګه ګورې؟

که ته دغسي یو ځوک یې نو ته د مذاکرې د تونل په اخیره کي ولاړ یې او د (سخت تاکتیک) مذاکره کوونکی یې.

۱. ایا ته تل د مخالفت څخه ځان ژغورې؟
۲. ایا ته هر وخت و امتیاز ورکولو ته غاړه ایږدې صرف په دې چي د مقابل لور سره دوستي ته وده ورکړې؟
۳. ایا ته خپل نظر اکثره اړوې؟
۴. ایا ته پر هره وینا له ورایه باور کوې؟

که ته دغسي یو ځوک یې نو د (سخت تاکتیک) مذاکره کوونکي په مقابل کي د (پاسته تاکتیک) مذاکره کوونکی یې. ته غواړې چي له خپل حریف سره دوست و اوسې.

۱. ایا ته هر وخت د هري وینا د اثبات له پاره ثبوتونه غواړې؟
۲. ایا ته په دې ګومان یې چي مذاکره د سترنج د بازۍ غوندي ده؟
۳. ایا ته داسي یو ځوک یې چي احساساتو ته ارزښت نه ورکوې؟
۴. ایا ته خپل منطق او پوهه په بې رحمانه ډول کاروې؟

که ته داغسي یو ځوک یې نو ته (تشریح غوښتونکی) مذاکره کوونکی یې او غواړې چي د مذاکرې جریان کنټرول کړې. ته ښایي سخت دریزه مذاکره کوونکی یې خو هغوندي هم نه لکه د (سخت تاکتیک) مذاکره کوونکی چي وي.

۱. ایا ته په دې لټه کي یې چي راپور جوړ کړې؟
۲. ایا ته تل په داسي قرارداد پسي ګورې چي د دواړو خواوو رضائیت پکښي وي؟

۳. ایا ستا توجه پر رتبو نه، بلکي پر گټو ده؟
۴. ایا ته د خپل حریف پر اندېښنو غوږ نیسې؟

که ته دغسي یو څوک یې نو ته یو (هم نظره) مذاکره کوونکی یې. ته د پاسته ستایل لرونکی مذاکره کوونکی یې خو هومره هم نه لکه د (پاسته تاکتیک) مذاکره کوونکی.

کله چي مذاکره کېږي نو اکثره دا امکان وي چي د دوو طرزونو (ستایلونو) ټکر رامنځ ته سي. سخت مذاکره کوونکی به ډېر ژر د پاسته مذاکره کوونکي له تاکتیکونو څخه تر پزي په تنګ سي او د (هم نظره) مذاکره کوونکي به د (تشریح غوښتونکي) جوړه کوونکی و دې ته درد راځي چي ولي و موضوع ته تل له یوې خوا (زاویي) ګوري.

ټکرونه مذاکره له خنډ سره مخامخ کوي او یا حتی د دې تر مخه چي پر یوې موضوع وړغېږي پر مخ ئې ختموي.

هغه لانجې چي د مذاکرو د ډولونو او انساني عاداتو څخه پیدا کېږي تل پر مذاکرو باندي خپل سیوری اچوي.

دا ډېر ضروري ده چي څوک دا زده کړي چي څنګه مذاکره د ستایلونو او شخصیتونو له ټکرونو څخه لیري وساتي.

ته باید تل و دې ته اماده یې چي د مذاکرې په ځینو مواردو کي دي د مذاکرې ستایل (طرز) ته بدلون ورکړې.

## جبر، چالبازي او تشویق

په عام ډول مذاکره کوونکي کوښښ کوي چي خپل حریفان د خپلي خوښي پر حل لاره راضي کړي او و دې ته د رسېدلو له پاره د درو طریقو څخه کار اخلي: جبر، چالبازي او تشویق. کېدای سي چي یو حریف درې واړه طرزونه په یوه وار استعمال کړي او یا ئې ادل بدل کړي دا په هغه صورت کي چي غواړي ځان ته معلومه کړي چي کوم یو ښه کار ورکوي. یقیناً تاسي هم دا طرزونه کارولای سی.

### ۱. جبر څه شي دئ؟

هغه زور ازمایي چي د دې ښکارندوی وي چي یوه خوا پر هغې بلي خوا باندي زوروره ده، او زوروره خوا به خپل ټول زور په کار واچوي چي کمزوره خوا د خپلو غوښتنو په منلو راضي کړي. هر همواقفه به د زوروري خوا په ګټه وي ځکه زوروره ډله به کمزوره خوا د یو طرفه موافقې منلو ته مجبوره کړي او د نه منلو په صورت کي به ئې د بدو عواقبو څخه هم خبره کړې وي.

### ۲. د چالبازۍ مهارت څنګه کار ورکوي؟

د جبر د استعمال پر ځای او د مذاکرې د په زړه پوري کولو له پاره ښایي یو طرف د چالبازۍ په مهارت خپل حریف و موافقې ته راضي کړي. په دې مهارت کي: لاپې او باتې ویشتل، ځیني مهم معلومات قصداً ښکاره کول، معلومات داسي ورکول چي څوک ګمراه کړي او یا د مذاکرې په اخیرو لحظو کي شرطونه ایښوول د دې مهارت مهم ټکي دي.

### ۳. ما ته څه وخت ممکنه ده چي تشویق کار کړم؟

دا داسي یو کار دئ چي باید له حریف سره وسي نه چي په حریف باندي وسي. دا تر ډېره حده په بااصولو مذاکرو باندي اړه لري او بنسټ ئې پر پخو معلوماتو، واقیعتونو، دلیلونو، اصولو، صداقت او پر پیاوړو اړیکو باندي ولاړ دئ.

نور بیا ...

لنډیز/احمد صمیم

# د نوي قاموس لیکني میتودلوژۍ ته یوه کتنه



دا کتاب (هارون خپل) یوازي د قاموس پوهانو له پاره لیکلی دئ چي ګران روهیال په ۳۴۴ مخه کي د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست له خوا ورچاپ کړی دئ. دا کتاب (۶۳) فارسي او پښتو منابع لري او هم (۶۲) انګلیسي ماخذ لري. کتاب ئې په ډېر مهارت، درایت او اکاډمیکو اصولو په رڼا کي لیکلی چي د ډول ډول قاموس لیکلو طریقې راښیي. تر انګلیسي موضوعاتو ئې زه تېرېږم. صرف هغه ټکي را اخلم چي زموږ د عامو لیکوالو په درد خوري او څه زیاتونه او ګمونه پکښي کوم.

دی وایي چي لغتونه، تعبیرونه او اصطلاحات د قاموس د لاري د یوې ټولنې څخه بلي ټولني ته نقلېږي. دی وایي چي د پښتو لومړني قاموسونه (ریاض المحبت) او (عجایب اللغات) نومېږي او بیا محمدګل مومند په ۱۳۱۶ش (پښتو سیند) ولیکی چي وروسته ئې (دریاب) او نورو سیندونو ته هم لاره وکړه. دی وایي چي قاموس لیکونکی باید ناپېیلی وي او لغت باید د شخصي سلیقې له مخي معنا نه کړي، یعني مجاهد او تروریسټ سره بېل کړي. یعني قاموس لیکونکی باید تر هیڅ نوعه مذهبي، سمتي، ګوندي او ژبني اغېزو لاندي را نه سي او هم باید یو قاموس په صرفي او نحوي لحاظ درست ولیکل سي.

په قاموس کي باید عامیانه او علمي شکل دواړه موجود وي. د قاموس هر ټوک باید پر خپل پوښ او عمودي څنډه باندي د مربوطه لغاتو د سر توري ولري چي په اسانۍ سره یو لغت پیدا سي چي هم سرخوږی له منځه وړي او هم وخت بچت کوي په هره رشته کي باید جلا جلا قاموسونه ولیکل سي او یا جامع هراړخیز پوهنغونډ یا دائرة المعارف ولیکل سي. مفغن سوي لغات په پښتو کتو کي ایشېدلي دي، د خپل اوږده تابعیت پر اساس اوس د پښتو مال بلل کېږي.

لکه د (بشر) عربي کلمه چي د انسان د ظاهري پوست په معنا ده. اوس ئې موږ د انسان پر ټوله بدن باندي اطلاق کوو لکه (خدای دي روغ بشر درکي).

**د مغغناتو ډولونه:**

له فارسي څخه پښتو سوي کلمې، لکه: اودس له آبدست څخه، اوښکي له اشک څخه، توپک له تفنگ څخه، خرڅ له خرچ څخه، ښادي له شادي څخه، ښار له شهر څخه، گرېوان له گرېبان څخه، روژه له روزه څخه، پېروژه له فیروزه څخه را مغغن یا افغاني سوي کلمې دي. همداسي ازمویښت له ازمایش څخه.

**له عربي څخه پښتو سوي کلمې:**

لکه متل له مَثَل څخه، ماشوم له معصوم څخه، اورته له عورت څخه، سبا له صباح څخه، سهار له سحر څخه، پاتا له فاتحه څخه، اسي له عاصي څخه، کمیس له قمیص څخه.

**مفرسي یا فارسي سوي کلمې له پښتو څخه:**

لکه: چټل له چټل څخه، توته له ټوټه څخه، جور له جوړ څخه، پُت له پټ څخه، گدود له گډوډ څخه، دند له ډنډ څخه، خاتول له غاټول څخه.

**دخیلي کلمې:**

هغه کلمې چي د پردو ژبو څخه راغلي دي او اوس زموږ د ژبي مال بلل کېږي، تابعیت ئې حاصل کړی او اوس په زور سره هم زموږ له ژبي او وطن څخه نه وزي هغه دا دي:

له فارسي څخه راغلي لکه: سیپاره، شورنخود، غچي، گودام.

له اردو څخه راغلي لکه: پاپړ، دودپتي، چولې.

له ترکي څخه راغلي لکه: قشلاق، قاغوش، سماوار، خان.

له انگلیسي څخه راغلي لکه: موټر، ماشین، انجنیر، رادیو.

له عربي څخه راغلي لکه: ساعت، کتاب، قلم، رباب. داسي په زرهاوو کلمې نوري هم سته چي موږ له پلار او نیکه څخه اورېدلي دي په معنا ئې پوهېږو او په دغه شکل ئې زموږ اولادونه هم راځخه زده کوي او هم ئې استعمالوي او هم ئې په معنا پوهېږي.

موږ ضرورت نه لرو چي بلبل ته ډانگ لکی ووایو. راډیو ته ږغ دبلی ووایو. رباب ته شرنگ سوتی ووایو، کتاب ته لیکی ووایو.

**ځای بدلېدونکي کلمې:**

دغسي کلمې ایتمولوژیکه او مورفالوژیکه څېړنه غواړي چي ایا پخواني او اصلي شکل ئې کوم یو وو او اوس ئې کومه بڼه غوره کړې ده، لکه: خسر او سخر، ماخستن – ماسختن، زمری – مزری، مځکه – خمکه، ورځ – روځ.

**د التباس مخنیوی:**

که موږ قام په (کام) ولیکو نو په فارسي کي د تالو او مقصد معنا ورکوي او په اردو کي د کار معنا ورکوي. او یا که قانون په کانون ولیکو نو په فارسي کي د مرکز او خاندان معنا ورکوي نو د داسي لیکلو څخه باید ډډه وسي، ځکه ناحقه سرخوږی راولاړوي.

**په سم تلفظ سره کلمه لیکل او ویل:**

جِلد باید په جُلد و نه وایو. اِناث باید په اُناث و نه لیکو. هَراس باید په هِراس و نه وایو. همداسي اُصول، حُکومت، حُضور په اَصول، حَکومت او حَضور و نه وایو.

## د فونیټکو نخښو ضرورت:

که حروفو ته دغه نخښې و رنه کړو نو به افغان افګان او طالبان به ټالیبان ووایو. نو د فونټیکي الفباء ډېر ضرورت دئ. که فونټیکه الفباء کار نه کړو نو خان به کان وایو، نخره به نکره وایو او خانپور به کانپور وایو او د شیر او شېر فرق به نه سو کولای. د تیر او تېر فرق به نه سو کولای، د توري یعني شمشیر او توري یعني تور رنګ فرق به نه سره کېږي.

څکه نو په انټرنیټي دنیا کي د هري کلمې سره ږغیز تلفظ هم ثبتېږي، تر څو د (سور) یعني سور رنګ او (سور) یعني سپور فرق سره وسي. فونټیک الفبیټ نخښې موږ ته د کلمې معیاري تلفظ په سمه توګه راښیي.

## د کلمو په سم وینګ کي د خج ارزښت:

خج یعني د فشار علامه یعني د کلمې پر کومه څپه باندي ټینګار او فشار راوستل، خیني مهال خج پر لومړۍ هجا راځي لکه بڼه یعني بوڼکه. کله چي پر دوهمه هجا فشار راځي لکه: بڼه یعني څهره، همداسي واړه یعني ټوله او (واړه) یعني کوچنیان دغه د غج علامه ده (  ) ده. همداسي زړه یعني په ښځه چي فشار ئې پر اوله څپه راځي او زړه د قلب په معنا دئ چي فشار ئې پر وروستۍ څپه راځي. که د خج علامه کار نه کړو نو د (کوټه) یعني اطاق او (کوټه) یعني تپ سپي فرق نه کېږي.

## املايي ليک دود او لهجه:

په لهجو کي داسي وایو چي: چکل، څکل، چیښل، چیخل، څښل، څخل. خو په لیکدود کي باید څښل ولیکل سي. یا مونګ، موګ، میږ، مینګ، میګ، خو په صحي املا کي باید موږ ولیکل سي.

## ځای بدلوونکي توري:

لکه شربل او شاربل، غرمه او غارمه، ښښل او بخښل، کښځل او ښکنځل، اوښې او اوښکې، نو دلته باید اصلي او الیشي سوي بڼې دواړه په ګوته سي.

## د ځینو کلمو د بدلون مسئله:

اصلي او الیش شوې بڼه لغوي او صرفي شنل غواړي خو په قاموسونو کي باید دواړه شکله ذکر سي څکه چي مختلفو لهجو والا به بڼه استفاده څني وکړي، لکه: مینځه – وینځه، کارغه – کارګه، ملګری – مرګری، نمر – لمر، لمسی – نمسی، نښلول – مښلول، لندول – لمدول، ژوند – جوند – زوند –ښښګڼه –ښښګړه، واله –ویاله – بیاله، هدیره –ادیره، شیدې –شودې، سیځل – سوځل، بګړی –پګړی.

## د کلمو پر معنا د لیکدود اغېز:

که (مه څه) په (ز) ولیکو نو (مزه) څني جوړېږي. که (څه) په (ز) ولیکو نو (زه) څني جوړېږي. که (څوک) په (س) ولیکو نو (سوک) څني جوړېږي. که (ښادي) په (ش) ولیکو نو شادي یعني بیزو څني جوړېږي او که ئې په (خ) ولیکو نو خادي یا خادسټ یا (خادې) یعني د برق خادې څني جوړېږي.

که شیندل یعني پاشل په (ښ) ولیکو نو ښندل یعني بخښل څني جوړېږي او که ئې په (خ) سره ولیکو نو خندل څني جوړېږي.

## لهجوي اِمالې یا د یوه توري کشول:

چي ځانته بېل لهجوي قاموسونه لیکل غواړي، لکه: (لار – لور) ویل، (اور – ایر) ویل، (خونه – خینه) ویل.

پخوانی او اوسنی املاوې

**د تورو ابدال او قلب:**

لکه پخوا نمازدیگر وو اوس ماځیگر سوی دئ. پخوا نماز پشین وو بیا نماز ماپښین سو او اوس ماپښین سوی دئ. پخوا (بخره) وه او اوس (برخه) سوه. چې دغسې نکاتو ته هم باید یو قاموس لیکونکی فکر وکړي.

هر لیکدود باید یو وار له رغ پوهني له مخې زده سي لکه یو ماشوم چې وايي: الوا – مالوم – تالیب، بیا په علمي سطحه کې وروسته په املاء کې د ټولنیز قرارداد له مخې حلوا، معلوم، طالب وروښیو او وئې لیکو.

**مارفولوژي یا ریښه پېژندنه:**

سدری له عربي صدری ځخه مفغنه نه ده بلکې د اویستا له سدره ځخه راغلې کلمه ده. تپوس له عربي تفحص ځخه نه دئ راغلی بلکې ریښه ئې تپ – تپا – تپېدل زړې پښتو کلمې دي. ښاغلی ترکي (شاقلي) نه دئ بلکې ښه + آغلی دئ. همداسي اپت، اتبار، انبر، چندن، اسیت له عربي آفت، اعتبار، حیثیت، عنبر او صندل ځخه نه دي راغلي بلکې آریایي ریښې لري.

په قاموس لیکنه کې باید پردي لغاتو ته د هغې مربوطه ژبې اختصاري توري هم و ځنگ ته ورسره ولیکل سي، مثلاً: فارسي لغت ته (ف)، ترکي ته (ت)، عربي ته (ع)، سانسکریټ ته (س)، پښتو ته (پ) ولیکل سي. هندي ته (ه) ولیکل سي.

**د لغات پلار او نیکه پېژندل:**

په پهلوي ژبه کې (بخر) وو، په دري کې (برخ) سو په پښتو کې (برخه) سوه. د فارسي خه (خوب) او بیا (ښه) سو. د فارسي (گرم) زموږ (گروم) سو.

د فارسي کت زموږ د کټ ځخه اخیستل سوی دئ. د فارسي کوتوال زموږ له کوټوال ځخه (ښکلی او اتیات) له عربي شکیل او احتیاط ځخه نه دي راغلي بلکې په سنسکریت کې ژوري ریښې لري.

عربو زموږ بعضې کلمې په عربي شکل نوشته کړې، لکه: کندهار ئې په قندهار واړاوه. پوپلزی ئې په فوفلزی ولیکی، ساکزی ئې اسحاقزی کړ. زین داور ئې (ارض داور) چې بیا فارسیانو زمین داور کړ. ساپی ئې صافی کړ.

**تعریف باید څنگه وي؟**

د یوې کلمې تعریف باید لنډ، ساده او واضح وي، معلوم وي مجهول نه وي پر محوري ټکو تمرکز ولري، پېچلی، مبهم نه وي او حاشیوي او پر فروعاتو بنا نه وي.

**تعریف باید جامع او مانع وي:**

جامع دا معنا چې د ده اړوند همجنسه شیان په ځان کې شامل کړي. مانع دا معنا چې هغه شیان له ځانه لیري کي چې په مانا، او مفهوم کې ورځخه جلا وي.

**لغات باید څنگه معنا کړو؟**

مثلاً که (هندو) لفظ ته غیر مسلم ولیکو نو دا خو دا معنا لري چې یعني یهودي، نصراني، مشرک او نور او که ئې د هند په اوسېدونکي معنا کړو نو په هند کي خو سیک، عیسایي، مسلم او بودایي هم اوسېږي. نو د هند هر اوسېدونکی خو هندو نه دئ او که ئې په مجازي معنا واخلو چې یعني (تور خال) نو دا خو عامه او مشهوره معنا نه ده نو زه وایم چې هندو یعني (هندي ژبی بت پرست) که معنا ښه به وي.

او که (ببر) په ببر زمري سره معنا کو نو یوازې د زمري لکۍ تر (ببر) ببره ده. نو باید هغه اصلي ماهیت او شکل ئې بیان سي،

مثلاً: ببر د پیشي له خاندان څخه دئ تر زمري غټ دئ، غاړه، څټ او لکۍ ئې وربښتان نه لري، نارنجي پوست لري په بره اوږد دئ توري او سپیني لیکي لري. سپین پوستی (ببر) هم سته چي توري لیکي لري. ببر په مجازي معنا کي د یوه بې رحمه او ظالم انسان له پاره کارېږي. حال دا چي زمری په مجازي معنا کي د یوه زړه ور او مړني انسان له پاره کارېږي.

یا د (درد) کلمه په پښتو کي د خښم او قهر له پاره استعمالېږي او په فارسي کي د رنځ، عذاب او تکلیف له پاره استعمالېږي.

قاموس لیکونکی باید د یوه لغت پراخ مفهوم او پراخ استعمال معیار په نظر کي ونیسي او د هغه لغت تاریخي تګلوري او معنوي بدلونونو ته پام وکړي. د کلمو د بېلابېلو معناوو له پاره شماره یا نوري جلا کېدونکي علامې په نظر کي ولري، لکه کامه، سکته، نقطه او نور.

**د لغت مشهوره معنا په نښه کول:**

مثلاً ایواد یا هیواد د لیري په معنا هم دئ د وطن په معنا هم دئ خو وطن ئې عام او مشهوره دئ یا کالي د کالا یا تجارتي متاع په معنا هم دئ د کالو یا جامو په معنا هم دئ خو دغه دوهمه معنا ئې عامه او مشهوره ده. یا مرسته پخوا د هیلي او طلب په معنا وه اوس دکومک په معنا ده نو هغه پخوانۍ معنا هم باید ذکر سي.

**د لغاتو د معنا تاریخي بدلون:**

دهګان په فارسي کي د کښتګر معنا درلوده. عربو دهقان څني جوړ کی او بیا دیګان سو چي اوس پښتانه مطلق فارسي ژبان ته دیګان یا دیګانان وایي دا د لغت دریم تطور دئ.

(مُخی) د سیال ناریته له پاره استعمالېده اوس یوازي د هغې ښځي له پاره استعمالېږي چي د بلي ښځي په بدل کي ورکول کېږي. نو په قاموس کي باید د یوه لرغوني لغت له پاره د (لر) علامه کارسي او د عامیانه لغت له پاره د (عا) علامه کارسي لکه (ګشنه) عامیانه لغت دئ علمي او رسمي بڼه ئې (ګرسنه) دئ

یا لکه (شاهد) د کتونکي په معنا دئ په شرعي عُرف کي د شاهدي ورکوونکي په معنا دئ په شاعرانه اصطلاح کي د معشوق مانا لري چي دې ټولو ټکو ته باید پام وسي، یعني مخففي نخښي ورته ولیکل سي.

یا (حیوان) په لوېدیځه لهجه کي د چارپایه حیواناتو له پاره کارېږي خو په ختیځه لهجه کي ئې د ماشوم په معنا اخلي. یا د (دایي) کلمه موږ د قابلې له پاره وایو خو ایرانیان ئې (ماما) بولي.

یا (آئین) موږ د مذهب په معنا اخلو، پاکستان ورته قانون وایي. یا طایفه موږ د قبیلې په معنا اخلو خو هندیان ئې د رقاصې او فاحشې په معنا اخلي.

مکان په عربي کي ځای یا کور ته وایي خو زموږ په لوېدیځه لهجه کي د کناراب یا تشناب په معنا عام سوی دئ. کمین موږ د عاجزه په معنا اخلو په اردو کي ئې بې همته او بې غیرته بولي.

(ډنګر) موږ بې جانه او کمزوري ته وایو. خو ځیني پښتانه ئې د خره یا غوایي په معنا اخلي.

نو یو قاموس باید دغسي لهجوي اشارې هم په نظر کي ونیسي. دروغ پخوا د یوه دېب نوم وو اس ئې پارسي وانان د کذب یا د رشتیا د ضد په معنا اخلي چي موږ ورته درواغ وایو.

صنم پخوا د بت معنا درلوده اوس ئې شاعران د معشوق په معنا استعمالوي. ملت پخوا د شریعت معنا درلوده لکه ملتِ ابراهیمي اوس ئې موږ د خلګو او ټولنې په معنا اخلو. وقف په لغت کې درېدو ته وایي خو په فقهي اصطلاح کې هغه ځای یا مال ته وایي چې هر څوک په خیراتي ډول استفاده ځنې کولای سي.

وقف کوونکې سړي ته (واقف) وایي او د وقف جمع اوقاف راځي. یا اجتهاد په لغت کې کوښښ ته وایي خو اوس په فقهي اصطلاح کې د یوه حکم استخراج ته وایي. په انګلیسي کې هم (cool) یخ ته وایي او اصطلاحي معنا ئې د (ډېر ښه) ده.

**مجازي معناوي:**

مثلاً په کندهارۍ اصطلاح کې چغال د بې همته او بې غیرته سړي له پاره کارېږي او (رستم) یا زمری د زړه ور او دلاور سړي له پاره کارېږي.

**په معکوسه معنا د کلمې استعمال:**

لکه پک ته چې څونه ور ووایي. یا زاهد د ریاکار له پاره استعمال کو او رند د یوه مخلص او صوفي په معنا واخلو یا هلئ د لوړې مرم یعني سخت وږی یم نه د مرګ په معنا نو دغسې محاورې او مکالمې هم باید له پامه و نه غورځوو.

**د مترادفو کلمو تر منځ توپیر په استعمال کې:**

لکه ځوان او ځلمی، خو ځلمی آس نه سو ویلای یا لوی او مشر خو مشر غویی نه سو ویلای یا ووړ او کشر خو کشر خر نه سو ویلای. همداسې (ځیږ) او (لواړ) او پوست او خوږین سره سل په سلو کې سره مترادف کلمات نه دي. یعني نه سو ویلای چې لواړ غنم خو ځیږه ویلای سو. همداسې پوست شفتالو نه وایو خو خوږین شفتالو ویلای سو. همداسې داړل او چیچل هم کاملاً د معنا په لحاظ یو نه دي یعني نه سو ویلای چې لړم وداړلم چې دلته چیچل صحي راځي، مګر د سپي له پاره بیا داړل صحي راځي. اچول او غورځول هم فرق سره لري موږ نه وایو چې اوبه په لوښي کې وغورځوه. شلول او شکول هم سره یو نه دي. مثلاً: ګرېوان مي وشلاوه، غلو وشکولم، نه وایو چې غلو وشلولم.

**د حروفو ابدال او لنډه ښه:**

لکه خوشحال – خوشال، پښه – ښپه، وروستۍ – اوسرۍ – اوسترۍ، ګرسره – ګردسره، درنه – درنده، درانه – دراندہ، زبه – ژبه – جبه، ژلۍ – ږلۍ – ګلۍ، ژوند – زوند – جوند، ماله جات – محله جات – محل نجات، هډدیره – هدیره – ادیره.

**تقلیدي ږغونه:**

لکه (میو)، (وو)، (غپه). همدارنګه نابېره ږغونه یا په زوره چغه چې کوم آواز لري او هم فرمایشي ږغونه باید په قاموس کې جلا ثبت سي لکه کوچ، پشته، چغه، ایش، ایخ (د اوښ د کښېنستلو له پار).

**غلط جمع الجمع شکلونه:**

لکه اولادونه د اولاد جمع او اولاد خپله د ولد جمع ده. مشکلاتات چې د مشکلات جمع ده او مشکلات خپله د مشکل جمع ده. کسانان چې د کسان جمع ده او کسان خپله د کس جمع ده. غریبانان چې د غریبان جمع ده او غریبان خپله د غریب جمع ده.

**د لهجو توپیر په لوېدیځه او ختیځه لهجه کې:**

بوټ – بوټونه – بوټان، غوا – غواوي – غواګاني، آس – آسان – آسونه، نجلۍ –

نجوني – جنکیاني – جنۍ – جنکۍ، خوله –خولۍ –خولۍ –خولیاني.

هغه کلمات چې مفرد او جمع ئې یو شان راځي لکه چوکۍ – خولۍ – ګاډۍ – هګۍ – ګېډۍ. خو کله کله چوکیاني، خولیاني، ګاډیاني هم راځي.

**اسم جنس:**

چې مفرد او جمع ئې یوازي په مفرد شکل استعمالېږي لکه: اوبه، بوره، غنم، اوړه، غوړي، تېل، مسې، شیدې.

**قاموسي نخښې:**

فعل په (ف) سره نخښه سي. اسم په (الف) نخښه سي، صفت په (ص) نخښه ولري، مصدر د (م) نخښه ولري، قید د (ق) نخښه ولري او داسي نور.

**اصطلاحات، محاورې او مشتقات:**

لکه جګه غاړه، لکه غاړه، غاړه ایښوول، غاړه اغوستل، غاړه بندول، غاړه خلاصول، غاړه غړۍ کېدل، غاړه په غاړه، لاس تر غاړه، سپینه غاړه، په غاړه کې اوبه معلومېږي. دا ټول اصطلاحات له غاړې څخه مشتق سوي دي. همداسي پوهیالی، پوهنیار، پوهنمل، پوهندوی، پوهنغر، پوهنملر، پوهنوال، پوهنور، پوهاند ټوله د پوهې له ریښې څخه راټوکېدلي دي.

**د مکررو یا تاکیدي تکوراغونډول:**

لکه: ژر ژر، کرار کرار، ورو ورو، نارې سورې، اوتي بوتي، سپکي سپوري، کنډوکپر، درهم و برهم، غونډ مونډ، غوړ پړ، چاغ شلنډ.

**د ناسمو تکو کره کول:**

بڼه چې د څېرې په معنا ده، باید بڼه یا بونکه ئې و نه وایو. لوړه په اوږده واو چې د قسم معنا لري باید لوړه یا پورته و نه وایو.

**درې مهمي ټکتې:**

د علامه بابا په قول له دې امله اصلاً (له دې عمل) څخه جوړ سوی دئ. په دې هکله د ده په حق کې. له دې کبله اصلاً له دې قبیله یا له دې جملې څخه سهي دئ. چې اوس ئې موږ د علت او سبب په معنا غلط استعمالوو.

**نوټ:**

د خلکو ژبه باید د خپل شخصي ذوق تابع و نه ګرځوو. په نوې لغت جوړونه کې باید هو به هو نوري ژبې ترجمه نه کړو او باید د اسانۍ، ښکلا، سلیم ذوق، ساده ګۍ، معقولیت، او عمومیت اصول له پامه و نه غورځوو. په نوو ترجمو کې باید زموږ د خپلې ژبې جوهر او اصالت ګډ وي.

**ولسي نوم ایښوونې:**

لکه کار موټر سراچه بولو یا غواګۍ ورته وایو. بس یا غټ موټر ته سرویس وایو، انټینا ته انتن وایو. دغسي نومونه بیرته په اسانه خپل اصلي حالت ته نه اړول کېږي.

**همږغه مشابهات:**

چې هم ئې املاء یوه وي او هم ئې ږغ یو وي، لکه: تور د جال په معنا یا تور د تهمت په معنا. کوټ – کورټۍ او کوټ د کلا په معنا.

**املایي مشابهات:**

چې ږغ ئې سره جلا وي خو املا ئې یوه وي. لکه: (خوندي = خواهران) او (خوندي) یعني ساتلي او محفوظ یا سَحَر یعني سهار او سِحَر یعني جادو.

**د التباس کلمې:**

خوله باید خولۍ ولیکو، ځکه د خوله (دهن) او خوله (عرق) سره ئې التباس راځي او هم باید په دغسي ځایو کې د خج علامه کار کو.

که دوې داسي کلمې راسي چي بالکل املا، ږغ او خج ئې سره برابر وي نو باید د هر یوه سره د هغه مرادفي معناوي وليکو لکه: (کوټه) د ډېر، زيات، خورا، په پېخر، زښت معناوي ورسره وليکو يعني زه کوټه کالي لرم. يا د غنمو کوټه باید د خَرَه، خرمن، انبار معناوي هم ورسره وليکو.

هغه سيمبولونه چي نوري معناوي هم څني فهمېږي:

لکه تاج د پاچهۍ له پاره، توره د افسر له پاره، ګل د پسرلي له پاره.

هغه کلمې چي په متضاده معنا کارېږي او مقصد ئې تاکيد او ټينګار وي:

لکه دوست او دښمن، سرتر پايه، ژوند او مرګ، اوږد او لنډ، چاغ او ډنګر، پنډ او نرى، پټ او ښکاره. مثال: هر څوک دوست او دښمن لري. دا د ژوند او مرګ مسئله ده. سر تر پايه مي مکتوب وکوت او نور ...

هغه کلمات چي د نر او ښځي په لحاظ ئې معنا فرق کوي: لکه (ژبه ور) د نارينه له پاره يعني اورژبى، نطاق او شاعر. (ژبه وره) د ښځي له پاره د بې شرمۍ معنا لري.

ژبني اصطلاحات باید په جلا قاموس کي سره راټول سي:

لکه خبره تر غاښ لاندي کول، د پايځې رګی، د مچ سره سپلاوه ګرځول، اوږه کښل، سترخان په پښه ښودل، د کراستي ملابند، خوله مي له اوبو ډکه ده، په غاړه کي اوبه معلومېدل، خولې مي اوبه وکړې، مور ئې په رښکۍ اوبه راکاږي، اوبه ورسره غلبېلوم، اوبه ئې ورډېري که، اوبه تر ورخ تېري دي، پر خپله ټکۍ اور اړوي، د سترګو اوبه ئې وتلي دي، غاښونه ئې راوايستل، اوبه خړول، بګړۍ له سره لوېدل.

د اصطلاحاتو سره باید د هغې جملې مفهوم او معنا هم وليکي چي د خلګو ښه سر په خلاص سي.

لکه (تر اوبو دمخه ګاولي کښل) يعني بې وخته تلوار کول يا (تږى تر اوبو پرې ايستل) يعني چا ته دوکه ورکول او نور ... په غاړه کي اوبه معلومېدل يعني نازک او ښايسته.

د منحوتو کلمو قاموس يعني په هغو کلمو کي چي ترخيم راغلى وي.

لکه: (نېځه) يعني نه يم خبر يا (څخه) يعني څه خبر يم.

**د مرکبو ټکو قاموس:**

چي اوس په يوه کلمه سره ويل کېږي يعني اسم د بل اسم سره يا اسم او صفت سره يو ځاى سوي وي لکه کاغذ باد، لاسليک، لمن ليک، ټوکمار، سرټمبه، سپين مخى، سرزوره او نور ...

**د زړو لغتو قاموس:**

لکه ميرځمن، دښن، لونل، لل، ګروهېدل، دروهېدل، او نور ...

د (نومورې) لغت پخوا د نامتو او نامداره، نوم وتي او نوميالي معنا درلوده خو اوس د مفرد غائب شخص له پاره د اشاري ضمير په توګه کارېږي.

نو دغسي ټکو ته هم باید په ځانګړو قاموسونو کي يادونه وسي.

**د سيمه ايزو ټکو رواجول په يوه جلا قاموس کي:**

لکه پمبى يعني اوخور. نربګى يعني هغه ښځه چي د نارينه غوندي اواز ولري او يا د نارينه غوندي غټه مټه وي. سيوک يعني کمزوره، کم جانه، سوځلى، خرټه: يعني لويه لنګوټه ټرل. تيک: يعني جګ او نېغ. نينګل: يعني تمه کول. شوډنګ يعني ناوړه

عمل تر سره کول. اندوخر یعني خرمستي. گوډانه یعني کڅوړه. همداسي اینگه، رینگی، ناټک، پوشتکی، گړوب، بوگانښ او نور ...

د (یو) کلمه چي ښځي ئې د تعجب پر ځای وایي. (ممی) چي کوچنیان ئې وریجي بولي.

## د اشخاصو د انسابو او شجرو علمي سپړنه د جینیالوجی د محققانو کار دئ:

لکه لودي، ابدالي، هوتکي، خټک، مومند، سوري او نور. یعني لودي سکندر، احمدشاه ابدالي، میرویس هوتکي، خوشحال خټک، رحمان او حمید مومند، شېرشاه سوري، یعني د دوی قومي ریښې هم باید توضیح سي.

## د تاریخي او جغرافیایي ځایو د نومونو قاموس:

لکه پختیا چي د پکتیا پخوانی بڼه ده. بکنز چي د باختر پخوانی بڼه ده. پکتیکا چي د پښتونخوا پخوانی بڼه ده او نور.

یا غلجی چي د غور غرچه، گیري، گر، گرزي او غرزي په نامه زړې ریښې لري. په انگریزي کي په دغه باره کي ځوک ځوک دئ؟ یا Who is who جلا قاموسونه لیکل سوي دي.

## د کلمو لغوي مانا او جغرافیایي مفاهیم:

لکه دوشنبه د هفتې د ورځو دریمه ورځ. دوشنبه د تاجکستان پایتخت. اوبه: آب، اوبه: د هرات یوه اولسوالي. توبه: یعني توبه او رجوع کول، توبه: د کوړک د غره سره یوه سیمه ده. دغسي نکات باید جلا جلا راجمع سي.

## یادونه:

۱ - د نړۍ والو مشاهیرو د معرفی قاموس په ادبي لحاظ، په سیاسي لحاظ، په مذهبي او عرفاني لحاظ او هم په نژادي او قومي لحاظ باید معرفي سي.

۲ - د فلسفي او عرفاني اصطلاحاتو د معنا له پاره باید جلا قاموس ولیکل سي، لکه: شراب، ساقي، حریف، رند، وحدت الوجود، او نور اصطلاحات. د پورته کلمو مطلب او تعبیر د صوفیانو په اصطلاح جلا جلا تعریفونه لري.

## د یوې کلمې په بڼه سرنومونه او مخففات:

لکه (اگسا) یعني د افغانستان د گټو ساتونکې اداره د تره کي په دوره کي.

(کام) یعني کارگري استخباراتي موسسه، د امین په دوره کي.

(خاد) یعني خدمات اطلاعات دولتی د ببرک په دوره کي.

## د ځینو تورو حذفول د اسانی له پاره:

لکه (دله) یعني دلته، (واله) یعني واخله، (چې) یعني چي یې، (مې) یعني مي یې، (بې) یعني به یې. بعضي محیطي او طبیعي لغات باید په ځو ژبو معنا سي چي ویونکي ته ئې فهم اسانه سي لکه په فارسي کي (شنبیلیه) په دري کي (اولبه) په پښتو کي (ملخوزي) په هندي کي میتهي، او په انگرېزي کي Febygreek ورته وایي.




حاجي عبدالظاهر څرک

# سپوږمۍ ته!

گراني سپوږمۍ!

که ته د خوښۍ په کومو محافلو کي گډون کوې، خو د لويو لارو د مسافرو څخه هم بې خبره نه يې. بېوزلانو او کونډيانو ته هم ستا خبر رسېږي.

ته زموږ د مدار هغه ستورې يې چي تر نورو رانژدې يې.

ستا د گرانښت علت همدا دئ او د هر چا په خولو کي يې. هغه نور ستوري چي زموږ څخه ليري دي او زموږ څخه بې پروا دي د اکثرو نومونه هم د چا نه دي زده او موږ څني بې پروا يو.

تا چي تر ټولو ځان کښته کړی دئ او د خپل نور څخه دي زموږ نړۍ نوراني کړېده ستا د همدردۍ نښه ده.

موږ هم بې درده نه يو زموږ شاعران تا په خپلو اشعارو کي ستايي او نجوني دي په لنډيو کي يادوي.

کشکي تا خپل خاطرات ليکلای سوای، څونه د ظالمانو ظلمونه، د يتيمانو او کونډيانو سوي نارې او کرږي او د مينانو د ميني خوږ ژوند او بېلتون به دي ذکر کړی وای، تل اوسې اې مهرباني ا وبې آزاري سپوږمۍ!

خيرالناس من ينفع الناس

